


# د کتاب ځانګړنې


د کتاب نوم : د سرو زرو صندوق

لیکوال : نذیر احمد "سهار"

چاپ زیار : ذ. شفق

کمپوزر : خلیل الله "چمن"

چاپ شمېر : ۱۰۰۰ ټوکه

چاپکال : ۱۳۸۱ ل - غویی

خپرندوی :دانش خپرندویه ټولنه

چاپ او کمپیوټر ځای

دانش کتابتون . قصه خوانی بازار - پېښور

ph: 2564513/ E.mail: danish2k2000@yahoo.com

# د خپرندویې ټولنې یادښت

پردیو ناتارونو او خپلمنځیو شخړو افغاني او په ځانګړي ډول پښتني ټولنه نه یوازې په مادي ډګر ځپلې، بلکې په معنوي ډګر کې یې هم نه جبرانېدونکي زیانونه ګاللي دي.

زموږ ټولنه د پوهې او نوې ټیکنالوژۍ او د ځوانو استعدادونو د روزلو او غوړولو له بهیره ډېره شاته پاتې ده او د پرمختیون او له نورو سره د سیالۍ لپاره لاد کلونو، کلونو زیار او هڅو ته اړتیا لري.

دانش خپرندویه ټولنه ویاړي چې د فرهنګي او نورو ادبي او کلتوري خدمتونو په لړ کې دادی د " سرو زرو صندوق " پر چاپ او خپراوي بریالی کیږي، په دې صندوق کې به تاسو له ډېرو علمي، ادبي، تاریخي، سانیسي، طبي او نورو په زړه پورې معلوماتو او عجایبو سره مخ شئ، چې لوستل به یې که خدای کړل د افغاني ټولنې د ځګرو ځپلو زده کوونکیو، محصلینو او نورو -- لپاره ګټور ثابت شي .

" درنښت "



## تړون:

دخپلو دوو ترونو په نوم،چې غيږې يې
لـه ماشومانو تشـې دي،اوما تـه لـه زويـه
په کمو سترګو نه ګورې.



## مننه اوکورودانی

له درانه فرهنګپال اسدالله دانش
څخه یوه نړۍ مننه چې ددې کتاب
خپراوي ته یې زړه ښه کړاودایې
خپل ملي چوپړو ګاڼه، همداراز له
ښاغلي استاد محمد اصف صمیم
څخه هم یوه دونیا مننه کوم، چې
پر کتاب یې په ډیر لنډ وخت کې
سریزه ولیکله، خلیل الله چمن
او ذبیح الله شفق ته هم کورودانی
وایم، چې پخپلو هنرمندو ګوتو یې
دا کتاب د کمپیوټر له غیږې
راوایست.

درنښت
نذیراحمد سهار

# فهرست

# د "سهار" په لاس

# د سهار ډالۍ

ښاغلی نذیر احمد زمور د ځوان کول هغه خوار یکښ او تپاند زلمی لیکوال دی، چې لیکل او لوستل یې دواړه غبرګ پاللي او یوازې پرېوه بسیا شوی نه دی.

سهار ډېر موده د هجرت د چاپیریال دوتلې او ټولمنلې ورځپاڼې (سهار) په پلوشو د ځوانانو په پاڼه کې ځلېدلی دی.

ښاغلي سهار په دې تانده تنکۍ ځوانۍ کې د احقیقت نومیرلی او تشخیص کړی، چې زمور ځوانان د هجرت په اغزن او ستونزمن چاپېریال کې د پوهې او زده کړې د ژووب (آب حیات) څومره تږي دي؟ او پر دې هم پوه دی، چې بې شمېره لاملونه دي، چې ددغو تږیو ځوانانو د علمي پرمختیا د تندې په زیاتولو کې یې لاس لرلی دی، نو ځکه یې د خپلو ځوانانو د علمي تندې د خړوبولو لپاره د نننۍ علمي نړۍ سمندر د "سهار" په کوزه کې ځای کړ او د پوهې له ګلبڼه یې د تاریخ . جغرافیې، ادب ، دینپوهنې ، ژوپوهنې (بیولوژي)، طبپوهنې، لرغونپوهنې، ستورپوهنې او ... ګلونه وچونډل او د پوهینو ځوانانو غاړې ته یې ترې امېل جوړ کړ.

ښاغلي سهار د ازمېښتي (تجربي) او ټولنیزو پوهنو دا لویه نړۍ پخپل زیار دومره ګزو ګام کړې، لکه نننۍ انټرنېټ، چې ګرده نړۍ په ګوټ کې نیولې ده او پر روانه او اسانه لار یې د خپلې ټولنې ځوانان له ګوتې نیولي، د پوهې د هر ډګر او هر ښار پر کوڅو یې ګرځوي.

ښاغلي سهار که خپل زيار په اوږدلې ، مردفه او غځېدلې بڼه ګاللې وای ، نو يوه لويه ټولپوهنه (دايرة المعارف) ترې جوړېده، خو دا دامانانه لري، چې ګڼې دده دا اوسنی زيار بې اغېزه او بې ارزښته دی.

که زه د ښاغلي سهار د زيار داوږدون او تنظيم ، پر وخت خبر شوی وای ، نو ما به ورته ددې دومره ګڼو علمي موضوعګانو پر ترديفي سمون سربېره د موضوعي اوږدون نغوته او مشوره هم ورکړې وای. د ښاري په توګه دده د کار په لړ کې دوه - درې ځایه د "لومړنيو" په باب معلومات وړاندې شوي دي، خو همدا لومړني بيا په ځېرمه يېزه (ضمني) توګه تر نورو سرليکونو لاندې هم وړاندې شوي دي، چې د کار پر وخت دده پرسترېا اوستوماني ګواهي کوی او يا به زه تېروتي يم خو له دې هر څه سره سره زه د خپلې نا پوهی ځېلې ويجاړې ټولنې په دې اوسني سروهلي بروهلي حالت کې ددغسې يوې علمي زېرمې او خزانې را ټولول هم خپلو ځوانانو او هم ښاغلي سهار ته يو نيک ښوګڼ او بختور فال بولم.

دده د لابرياليتوب او لاسبري لپاره دستر ښتن (ج) ستر درشل ته لاسونه لپه کوم او دده لپاره د خوشال بابا دعا را غبرګوم، چې :

زه له تا برخورم ته برله عمره
روغمن او ښادمن غواړم .

محمد آصف صميم

۱۳۸۱/۲/۲

## د سپيڅلي کتاب قرآن کريم په هکله:

۱. په قران کريم کې د محمد (ص) نوم دوه ځله ذکر شوی.
۲. په قران کريم کې ۷۰۰ځله دلمانځه حکم شوی.
۳. په قران کريم کې ۱۲ سورتونه په قسم پيل کيږي.
۴. جامع القران د حضرت عثمان (رضي الله عنه) ستاينوم و.
۵. په قران کريم کې ۱۲غزاوې يادې شوې.
۶. حضرت مريم(رض) يوازينی ښځه ده چې قران کريم يې يادونه کړې ده.
۷. قران کريم په ۲۲ کالو او پنځو مياشتو کې پر حضرت محمد (ص) نازل شوی دی.
۸. د قران کريم لومړنی حافظه صفيه بنت عمر وه.
۹. قران کريم د "ب" په توری پيل او د "س" په توری پای ته رسي.
۱۰. په قران کريم کې دساينس په اړه ۷۵۶ ايتونه راغلي.
۱۱. د قران کريم ۱۶. سورتونه يوه، يوه رکوع لري.
۱۲. د قران کريم ۱۲. سورتونه درې، درې رکوع لري.
۱۳. د قران کريم پنځه سورتونه اووه، اووه رکوع لري.
۱۴. د قران کريم دوه سورتونه يوولس، يوولس رکوع لري.
۱۵. د قران کريم درې سورتونه شپاړس، شپاړس رکوع لرې.
۱۶. د قران کريم دوه سورتونه ۲۴-۲۴ رکوع لري.
۱۷. د قران کريم ۱۹ سورتونه ، دوه ، دوه رکوع لري.
۱۸. د قران کريم شپږ سورتونه څلور، څلور رکوع لري.
۱۹. د قران کريم درې سورتونه لس، لس رکوع لري.
۲۰. د قران کريم دوه سورتونه ۲۰-۲۰ رکوع لري.

۲۱. د قرآن کریم یو سورت ۴۰ رکوع ګانې لري

۲۲. د محمد (ص) پر وخت حضرت عایشه صدیقه (رض) حضرت حفصه (رض) حضرت ام سلمه (رض) او ام ورقه بن نوفل (رض) د قرآنکریم حافظانې وې.

۲۳. الله (ج) په قرآن کې پرخپل ذات اووه ځله قسم یاد کړی.

۲۴. حضرت خالد بن سعید بن ابی العاص (رضي الله عنه) د وحي لومړنی کاتب دی.

۲۵. په قرآن کریم کې د اسماني اجرا موڅخه یوازې دلمر سپوږمۍ او ستورو یادونه شوې.

۲۶. په قرآن کریم کې له کیمیاوي عناصرو څخه د سرو سپینو زرو او اوسپنې یادونه شوې.

۲۷. په قرآن کریم کې د ملائیکو له جملې څخه د جبرائیل (ع)، میکائیل (ع)، هاروت، ماروت او ملك الموت یادونه شوې.

۲۸. د قرآن کریم دیرشمه سپاره ۵۶۴ ایتونه لري.

۲۹. په قرآن کریم کې دمیاشتې نوم "شهر" ۱۲ ځله راغلی چې یو کال کیږي. په همدې بڼه دورځې نوم "یوم" ۳۶۰ ځله راغلی چې یو کال کیږي. کال میاشت او روځ د قرآن کریم له مخې تاکل شوې دي.

۳۰. د نړۍ تر ټولو په کچ وړوکی قرآن له "شفیع العابدین" بنګله ... سره دی، دغه قرآن ۲ سانتي متره اوږدوالی او ۲ سانتي متره سور لري. دغه نسخه د نوموړي نیکه "سبحان" په ۱۹۴۲ ز کال له مصر څخه بنګله دیش ته وړې وه.

۳۱. په قرآن کریم کې ۱۱۵ ځله "اخرت" او ۱۱۵ ځله "دنیا" یاده شوې.

۳۲. په قرآن کریم کې ۸۸ ځله "موت" او ۸۸ ځله "حیات" یاد شوي دي.

۳۳. په قران کريم کې ۱۸۰ ځله "سيئات" او ۱۸۰ ځله "صالحات" راغلي دي.

۳۴. په قران کريم کې ۵۰ ځله "نفع" او ۵۰ ځله "ضرر" راغلی دی.

۳۵. په قران کريم کې ۳۶۸ ځله "ناس" او ۳۶۸ ځله "رسل" راغلی دی.

۳۶. په قران کريم کې ۵۷ ځله رحمان او ۱۱۴ ځله (دوه چنده درحمان) رحيم ياد شوی دی.

۳۷. په قران کريم کې ۱۱۷ ځله "جزا" او ۲۳۴ ځله د جزا دوه برابره "مغفرت" لفظ راغلی.

۳۸. په قران کريم کې ۱۲۰ ځله د "عسر" او ۳۶ ځله د "يسر" (دعسر درې برابره) يادونه شوې ده.

۳۹. د قران کريم زر ايتونه د توحيد په اړه، زر د وعدې په اړه، زر د وعيد په اړه، زر د اخلاقو، زر د انبياو دکيسو، زر د پند او مثالونو، پنځه سوه د احکامو، ۱۰۰ د دعا په اړه او ۶۰ منسوخ دي. چې ټول ۶۶۶۶ ايته کيږي.

۴۰. په قران کريم کې د "روم" سورت د يوه ښار په نوم راغلی.

۴۱. په قران کريم کې د درې مرغانو نوم راغلی دی.

۴۲. د قران کريم ړومبنی لفظ "بسم الله" دی.

۴۳. په قران کريم کې د "الله" لفظ ۲۵۸۴ ځله راغلی.

۴۴. په قران کريم کې د "سورة" لفظ ۷ ځله راغلی.

۴۵. رحمان سورت ته "عروس القران" وايې.

۴۶. د قران مطابق دوزخ اووه دروازې لري.

۴۷. "الفاتحه" سورت اووه ايتونه لري.

۴۸. د بقره سورت ۱۲۸۲ ايت د قران کريم تر ټولو اوږد ايت دی.

# د قرآن د تورو څرګندونه

۱. په قران کريم کې "الف" توری ۴۸۸۷۲ ځلې راغلی.

۲. په قران کريم کې "ب" توری ۱۱۴۲۸ ځلې راغلی.

۳. په قران کريم کې "ت" توری ۱۱۹۹ ځله راغلی.

۴. په قران کريم کې "ث" توری ۱۲۷۶ ځلې راغلی.

۵. په قران کريم کې "ج" توری ۳۲۷۳ ځلې راغلی.

۶. په قران کريم کې "ح" توری ۹۷۳ ځلې راغلی.

۷. په قران کريم کې "خ" توری ۲۴۱۶ ځلې راغلی.

۸. په قران کريم کې "د" توری ۵۶۰۲ ځلې راغلی.

۹. په قران کريم کې "ذ" توری ۴۶۷۷ ځلې راغلی.

۱۰. په قران کريم کې "ر" توری ۱۱۷۹۳ ځلې راغلی.

۱۱. په قران کريم کې "ز" توری ۱۵۹۰ ځلې راغلی.

۱۲. په قران کريم کې "س" توری ۵۹۹۱ ځلې راغلی.

۱۳. په قران کريم کې "ش" توری ۲۱۱۵ ځلې راغلی.

۱۴. په قران کريم کې "ص" توری ۲۰۱۲ ځلې راغلی

۱۵. په قرآن کریم کې "ض" توری ۱۳۰۷ ځلې راغلی.

۱۶. په قرآن کریم کې "ط" توری ۱۲۷۷ ځلې راغلی.

۱۷. په قرآن کریم کې "ظ" توری ۸۴۴ ځلې راغلی.

۱۸. په قرآن کریم کې "ع" توری ۹۲۲۰ ځلې راغلی.

۱۹. په قرآن کریم کې "غ" توری ۲۲۰۸ ځلې راغلی.

۲۰. په قرآن کریم کې "ف" توری ۸۴۹۹ ځلې راغلی.

۲۱. په قرآن کریم کې "ق" توری ۶۸۱۳ ځلې راغلی.

۲۲. په قرآن کریم کې "ك" توری ۵۵۰۰ ځلې راغلی.

۲۳. په قرآن کریم کې "ل" توری ۳۴۳۲ ځلې راغلی.

۲۴. په قرآن کریم کې "م" توری ۳۶۵۳۵ ځلې راغلی.

۲۵. په قرآن کریم کې "ن" توری ۴۰۱۹۰ ځلې راغلی.

۲۶. په قرآن کریم کې "و" توری ۲۵۵۳۶ ځلې راغلی.

۲۷. په قرآن کریم کې "ه" توری ۱۹۰۷۰ ځلې راغلی.

۲۸. په قرآن کریم کې "لا" توری ۳۷۲۰ ځلې راغلی.

۲۹. په قرآن کریم کې "ی" توری ۴۵۹۱۹ ځلې راغلی.

# په قرآن کریم کې د ځینو پیغمبرانو نوموونه.

- په قرآن کریم کې د حضرت اسماعیل (ع) نوم ۸ ځله راغلی دی.
- په قرآن کریم کې د حضرت الیاس (ع) نوم ۳ ځله راغلی دی.
- په قرآن کریم کې د حضرت ایوب (ع) نوم ۶ ځله راغلی دی.
- په قرآن کریم کې د حضرت داوود (ع) نوم ۶ ځله راغلی دی.
- په قرآن کریم کې د حضرت ذوالکفل (ع) نوم ۱ ځل راغلی دی.

- په قران کريم کې د حضرت ذکريا(ع) نوم ۷ ځله راغلی دی.
- په قران کريم کې د حضرت صالح (ع) نوم ۹ ځله راغلی دی.
- په قران کريم کې د حضرت سليمان (ع) نوم ۱۰ ځله راغلی دي.

---

- په قران کريم کې د ذوالقرنين لفظ ۳ ځله راغلی دی.
- په قران کريم کې د بنی ادم لفظ ۴ ځله راغلی دی.
- په قران کريم کې د بنی اسرائيل لفظ ۴۰ ځله راغلی دی.
- په قران کريم کې د نمرود ذکر ۲۳ ځله راغلی دی.
- په قران کريم کې د ذوالنون لفظ ۴ ځله راغلی دی.
- په قران کريم کې د ال روم ذکر ۱ ځل راغلی دی.
- په قران کريم کې د سامری نوم ۲ ځله راغلی دی.
- په قران کريم کې د ال موسی لفظ ۱ ځل راغلی دی.
- په قران کريم کې د ال لوط لفظ ۴ ځله راغلی دی.
- په قران کريم کې د ال فرعون لفظ ۱۳ ځله راغلی دی.
- په قران کريم کې د ال عمران لفظ ۱ ځل راغلی دی.

- په قرآن کریم کې د آل داوود لفظ ۱۰ ځل راغلی دی.
- په قرآن کریم کې د آل ابراهیم لفظ ۲ ځله راغلی دی.
- په قرآن کریم کې د آذر نوم ۹ ځله راغلی دی.
- په قرآن کریم کې دهامان نوم ۴ ځله راغلی دی.
- په قرآن کریم کې د آدم (ع) نوم ۱۷ ځله راغلی دی.
- په قرآن کریم کې د یونس (ع) نوم ۴ ځله راغلی دی.
- په قرآن کریم کې د یعقوب (ع) نوم ۲۶ ځله راغلی دی.
- په قرآن کریم کې دیحیی(ع) نوم ۵ ځله راغلی دی.
- په قرآن کریم کې د حضرت هود(ع) نوم ۷ ځله راغلی دی.
- په قرآن کریم کې د حضرت هارون (ع) نوم ۸ ځله راغلی دی.





# د بیت الله شریف په هکله

* د نړۍ تر ټولو لومړنۍ ودانۍ مکه معظمه ده.
* حضرت ادم (ع) د لومړي ځل لپاره په مکه معظمه کې عبادت کړی.
* ملایکو د لومړي ځل لپاره مکه معظمه ودانه کړې ده.
* مکه معظمه لومړی ملایکو او بیا ادم (ع) جوړه کړه.
* حضرت ابراهیم (ع) د مکې معظمې بنسټ کېښوده.
* قریشو بیا جوړه کړه او بتان یې پکې کښېښودل.
* عبدالله بن زبیر (رضي الله عنه) د بیا ځل لپاره ودانه کړه.
* حجاج بن یوسف دوه ځله له سره ودانه کړه.
* کعبې شریفې ته لومړی اسماعیل (ع) جامه ورواغوستله.
* اسعد ابوبکر کرب ټوله کعبه وپوښله.
* دمکې معظمې جامه له رنګارنګ ټوټو څخه جوړېږي.
* کعبې شریفې ته هر کال جامه ور نوې کېږي.
* د جاهلیت په پېر کې کعبه څو ځله ربیعه وپوښله.



* د کعبې پورتنۍ خواد ذولحجې په ۸ مه نیټه پوښل کېږي.
* د کعبې ښکتنۍ خوا په عاشوراکې پوښل کیږي.
* محمد(ص) کعبه په یمني ټوټو یاټو کرانو پوښله .
* عثمان (رضي الله عنه) او عمر (رضي الله عنه) د مصر په سپینو ټوټو کعبه شریفه پوښله.
* حجاج بن یوسف کعبه شریفه په "دیبا" پوښله.
* حضرت معاویه (رضي الله عنه) په کال کې دوه ځله کعبې ته جامه وراغوستله.
* دمعاویه د خلافت پر مهال په روژه او عاشورا کې کعبه پوښل کېده.
* یزید او عبدالله بن زبیر کعبه شریفه په " دیبا" پوښله.
* په دریمه ، څلورمه پیړۍ کې یوازې " حجر الاسود" نه پوښل کېده.
* په ۳۰۰ه کلو کې کعبه شریفه په افغاني سرې " دیبا" پوښل کېده.
* محمود غزنوی په ۴۶۶ کال دکعبې شریفې لپاره زېړه جامه ولیږله.
* ناصر عباس په ۵۷۵ کعبې ته شنه جامه ورواغوستله.
* په همدې مهال ښکتنۍ برخه په تور ټوکرو پوښل شوه.
* د کعبې شریفې جامه له اتو ټوټو برابرېږي.
* د کعبې شریفې ملاستنی (کمر بند) هم له اتو ټوټو څخه وي.
* د ملاستني د ایتونو تر منځ "یا حنان" او "یامنان" لیکل شوي.
* کعبه شریفه د رومبي ځل لپاره دمکې د نیولو پر مهال و مینځل شوه.

* کعبه شریفه هر کال دوه ځله مینځل کیږي.
* کعبه د ګلاب ،عنبر، عود او سرو ګلابو په اوبو مینځل کیږي.
* د زمزم اوبه هم د کعبې شریفې د مینځلو پر وخت کارول کیږي.
* جارو یا ریبځ تر مینځلو وروسته پر خلکو وېشل کیږي.
* د کعبې شریفې ځلور دیوالي د حضرت عمر(رضی الله عنه) پر وخت جوړه شوه.
* کعبه شریفه له ځمکې نه ۹ ګزه لوړه ده.
* اوږدوالی یې له شمالي رکن څخه تر " حجر الاسود" پورې ۳۲ ګزه دی.
* سور یې له شمالي رکن څخه تر غربي رکنه ۲۲ ګزه دی.
* کعبه شریفه ابراهیم(ع) بې وره "بې دروازې" جوړه کړې وه.
* د کعبې شریفې داخلي بڼه مربع ته ورته ده.
* دکعبې په ختیزه برخه کې لومړی ځل قصي بن کلاب ور جوړ کړ.
* د کعبې شریفې وړوکی ور د" التوبه" په نوم یادیږي.
* پر کعبې شریفې د لومړي ځل لپاره له میلاد څخه ۳۰۰۰ کاله وړاندې یمني پاچا "تبع حمیری" څادر غوړولی و
* کعبه شریفه ټول ۹ مناره لري.
* پر کعبې شریفې ټول ۱۰ ملیارده ریاله لګښت شوی دی.

# د نبوي مسجد او مسجد الحرام په اړه

* دوه لکه او ۵۷ زره لمونځ کوونکي پکې ځايېږي.
* پراخوالی يې ۱۶۵۵۰۰ مربع متره دی.
* لس منارې لري، چې شپږ يې نوې جوړې شوې دي.
* دشپږو منارو اوږدوالی يې ۱۰۶ متره او د څلورو منارو يې ۷۲ متره دی.
* د لمونځ کوونکو لپاره ځانګړې شوی ځای ټول ۱۳۵۰۰۰ مربع متره دی.
* د حج او عمرې پر وخت ۱۰ لکه کسان پکې ځايېږي.
* د مسجد الحرام ټول پراخوالی ۲۸۰۰۰ مربع متره دی.
* په عامو ورځو کې ۷ لکه تنه پکې ځايېږي.
* د عمرې او حج پر مهال په نبوي مسجد کې ۱۰ لکه تنه ځايېږي.
* مسجد الحرام ۳ لويې او ۲۷ وړې عامې دروازې هم لري.
* اووه خود کارې زينې "لفټونه" او اته ولاړې او ختلې زينې لري.
* په مسجد الحرام کې ۵۷ زره ګروپونه او قنديلونه لګول شوي.
* مسجد الحرام ۵۲۰۰۰ اودس ځايونه او ۲ زره تغارې "حمامونه" لري.
* په مسجد الحرام کې په يوه ورځ ۲۵۰۰۰ مکعب متره اوبه مصرفيږي.



# د سلګر پیغمبر حضرت محمد(ص) په هکله

- د محمد (ص) د پلار اصل نوم "عبدالله" وو.
- د محمد بنه ابراهیم (ع) ته ورته وه.
- حضرت محمد (ص) د لومړي ځل لپاره د اسد بن زراره د جنازې لمونځ اداکړ.
- محمد (ص) په عمر کې یو ځل حج کړی دی.
- د محمد (ص) زوکړه دشفاپه لاسو وشوه.
- محمد (ص) یو سړی وژلی هغه هم "ابی بن خلف".
- د حضرت محمد (ص) د جنازې دلمانځه امام نه و.
- محمد (ص) د "ثوبیې" شودې هم رودلې دي.
- محمد (ص) ایمن (برکه) ته د مورخطاب کاوه.
- محمد (ص) د صفار په غره کې بیعت واخست.
- محمد (ص) د عبدالله زوی، عبدالله بن عبدالمطلب،بن هاشم ،بن مناف،بن قصی ،بن کلاب ،بن مره ،بن کعب ،بن لوي ،بن غالب ، بن فهر ،بن مالك ،بن نغز ،بن کنانه ،بن خزیمه ،بن مدرکه ،بن الیاس ،بن مغر ،بن نزار ،بن معد ،بن عدنان و.
- د محمد (ص) د ژوند وروستی کار مسواك وهل وو.
- د محمد (ص) په مشری مسلمانانو په دوهم هجری کال اختر وکړ.
- محمد (ص) ته حضرت علي (رضي الله عنه) غسل ورکړ.
- د محمد (ص) د دریم زوم نوم حضرت "ابو العاص" وو.

※ محمد (ص) په قاب قوسین کې له خدای (ج) سره خبرې کړې دي.

※ محمد (ص) ثور غار ته د تګ پر مهال د ام معبد عاتکه کورته لاړ. د نوموړې کور په قدیر نومې ځای کې و.

※ محمد (ص) خپله لومړنۍ خطبه په "بطن بتولی" کې وویله.

※ محمد (ص) له یهودو سره د هجرت په ړومبي کال د سولې تړون لاسلیک کړ.

※ د محمد (ص) د دایی نوم "ماجده" و.

※ محمد (ص) یو ځلې حج کړی، هغه هم په ۶۳ کلنۍ کې.

※ د حج پر وخت د حضرت محمد (ص) ویښتان معمر بن عبدالله بن فضله وخرییل.

※ د خندق په جګړه کې د حضرت رسول اکرم (ص) څلور لمونځونه قضا شول.

※ محمد (ص) د مکې په "سوف انلیل" کې پیدا شو.

※ محمد (ص) په ۶۲۱ ز کال په معراج وخوت.

※ رسول الله (ص) د مکې د فتحې لپاره د ۱۵ کسانو وینه نویبدا روا وګڼله چې په هغو کې څلور ووژل شول او پاتې یې په اسلام مشرف شول.

※ محمد(ص) په "المدثر" سورت سره د اسلام تبلیغ پیل کړ.

※ د محمد (ص) دیني ورور "عثمان بن مغطن" نومېده.

※ د محمد (ص) راز "حذیفه بن الیمان" ته معلوم و.

※ د احد په غزا کې د محمد (ص) غاښ مبارک د عتبه بن وقاص په لاس شهید شو.






- حضرت ادم علیه السلام ۱۰۰۰ کاله
- حضرت شیث علیه السلام ۹۱۳ کاله
- حضرت نوح علیه السلام ۹۵۰ کاله
- حضرت شعیب علیه السلام ۸۸۲ کاله
- حضرت صالح علیه السلام ۵۸۶ کاله
- حضرت ادریس علیه السلام ۳۵۶ کاله
- حضرت هود علیه السلام ۲۶۵ کاله
- حضرت ذکریا علیه السلام ۲۰۷ کاله
- حضرت ابراهیم علیه السلام ۱۹۵ کاله
- حضرت سلیمان علیه السلام ۱۵۰ کاله
- حضرت ایوب علیه السلام ۱۴۶ کاله
- حضرت اسماعیل علیه السلام ۱۳۷ کاله
- حضرت یعقوب علیه السلام ۱۲۹ کاله
- حضرت موسی علیه السلام ۱۲۵ کاله
- حضرت اسحاق علیه السلام ۱۲۰ کاله
- حضرت هارون علیه السلام ۱۱۹ کاله
- حضرت یوسف علیه السلام ۱۱۰ کاله
- حضرت یحیی علیه السلام ۹۵ کاله
- حضرت محمد (ص) علیه اسلام ۶۳ کاله




☆ روایت دی چې ادریس (ع)، عیسی (ع) او الیاس (ع) اسمان ته ختلي.

☆ په قرآن کریم کې تر ټولو ړومبی د آدم (ع) نوم راغلی.

☆ صابون حضرت صالح (ع) جوړ کړی دی.

☆ حضرت ادریس (ع) ۱۸ ښارونه جوړ کړي.

☆ دیروشلم ښار بنسټګر حضرت داود (ع) دی.

☆ حضرت شیث (ع) او هود (ع) ادم (ع) ته ورته وو.

☆ حضرت هارون (ع) داحد په مقام ښخ شوی دی.

☆ عیسی (ع) د "کالوری" له غره څخه اسمان ته پورته کړای شو.

☆ د موسی (ع) ښځه حضرت صفوره (رض) نومیده.



# د اسلام د ستورو لارښودو د مړینې نیټې:

- حضرت محمد (ص) په ۱۱ ه کال د ربیع الاول په ۱۲مه نیټه وفات شو
- حضرت ابوبکر صدیق (رضي الله عنه) د ۱۳ ه کال د جمادی الاخر په ۲۲مه نیټه په حق ورسید.
- حضرت عمر (رضي الله عنه) په ۲۴ ه کال د محرم په لومړۍ نیټه په شهادت ورسېد.
- حضرت عثمان (رضي الله عنه) د هجرت په ۳۵ کال په شهادت ورسېد.
- حضرت علي (رضي الله عنه) په ۴۰ ه کال په شهادت ورسېد.
- حضرت فاطمة الزهرا (رض) په ۱۱ ه کال وفات شوه.
- حضرت امام حسن (رضي الله عنه) په ۵۰ ه کال وفات شو
- حضرت امام حسین (رضي الله عنه) په ۶۰ ه کال وفات شو
- حضرت امیر حمزه (رضي الله عنه) په ۳ ه کال شهید شو
- حضرت عباس (رضي الله عنه) په ۳۲ ه کال وفات شو
- حضرت ادریس قرنی په ۳۹ ه کال وفات شو
- حضرت امام اعظم (رح) په ۱۵۰ ه کال وفات شو
- حضرت امام ابو یوسف (رح) په ۱۸۲ ه کال وفات شو
- حضرت امام محمد (رح) په ۲۰۴ ه کال وفات شو
- حضرت امام شافعی (رح) په ۱۵۶ ه کال وفات شو
- حضرت امام مالك (رح) په ۱۷۹ ه کال وفات شو
- حضرت بختیار کاکی (رح) په ۶۳۳ کال وفات شو

# د اصحابو له تاریخه

- دوره حضرت ابوبکرصدیق (رضي الله عنه) جوړه کړې ده.
- د حدیبې دسولې تړون حضرت علي(رضي الله عنه) ولیکه.
- د لومړي ځل لپاره د موذنانو تنخواوې حضرت عثمان(رضي الله عنه) وټاکلې
- د حضرت عثمان(رضي الله عنه) ۹ لوڼې او ۸ زامن وو.
- ابوبکر صدیق(رضي الله عنه) د محمد(ص) لومړنی مقتدي و چې لمونځ یې ورپسې ادا کړ.
- حضرت عمر(رضي الله عنه) په پهلواني او وینا کې ډیر ماهر وو.
- حضرت عمر (رضي الله عنه) ۲۷ کلن و چې مسلمان شو.
- حضرت عثمان(رضي الله عنه) ۲۰ کلن و چې مسلمان شو.
- حضرت علی(رضي الله عنه) ۱۰ کلن و چې مسلمان شو.
- حضرت بلال بن رباح (رضي الله عنه) ۱۹ کلن و چې مسلمان شو.
- حضرت جعفر بن ابی طالب (رضي الله عنه) ۱۸ کلن و چې مسلمان شو.
- حضرت عبیده ابن الجراح (رضي الله عنه) په ۳۰ کلنۍ کې ایمان راوړ.
- حضرت سعد بن ابی وقاص (رضي الله عنه) په۱۷ کلنۍ کې ایمان راوړ
- حضرت امام حسن (رضي الله عنه) په جنت البقیع کې ښخ دی.
- "یوحنا" په عبراني ژبه دعیسی (ع) نوم ذی.
- حضرت عیسی (ع) په "بیت اللحم" کې وزیږېد.
- حضرت عزیز(ع) په دمشق کې ښخ شوی دی.
- د حضرت حزقیل (ع) قبر په کوفه کې دی.
- حضرت سلیمان(ع) په بیت المقدس کې دفن کړای شوی.

# په چارو کې تر ټولو ړومبني

- ړومبنۍ ښځه چې پر محمد (ص) یې ایمان راوړ خدیجة الکبری (رض) وه.
- ړومبنی نارینه چې ایمان یې راوړ ابوبکرصدیق (رضي الله عنه) و.
- ړومبنی زلمی چې اسلام یې ومانه حضرت علی (رضي الله عنه) و.
- ړومبنۍ غزا چې رسول الله (ص) پخپله پکې ونډه درلوده د بدر غزا وه.
- د اسلام ړومبنۍ شهیده حضرت سمیه (رض) ده.
- د مسلمانانو ړومبنی جومات "قبا" جومات دی.
- مسلمانو په لومړي ځل حبشې ته کډې وکړې.
- د مسلمانانو ړومبنی موذن حضرت بلال (رضي الله عنه) و.
- ړومبنی شخص چې د مکې دفتحې پر وخت مسلمان شو ابوسفیان بن حارث (رضي الله عنه) و.
- ړومبنۍ غزا چې ښځو پکې ګډون وکړ د احد غزا وه.

- لومړنی حج په نهم هـ ق کال تر سره شو.
- لومړنی ښځه چې د مسلمانانو او کفارو تر منځ ووژل شوه "ابن الحضر" وه.
- ادریس (ع) لومړنی پیغمبر دی چې له قلم څخه یې کار واخست.
- لومړنی سړی چې پر کفارو یې غشی وار کړ سعدبن وقاص (رضي الله عنه) و.
- د مرګ پر وخت تر ټولو لومړنی دوه رکعته لمونځ حضرت خبیب بن عدي (رضي الله عنه) وکړ.
- د اسلام لومړنی سرښندوی حضرت علی (رضي الله عنه) و.
- د نړۍ لومړنۍ ښځینه صدراعظمه "بندرانای کی" وه.
- میلمنو ته لومړنی میلمستیا ورکوونکی ابراهیم (ع) و.
- په مدینه کې د مسلمانانو لومړنی ماشوم عبدالله بن زبیر (رضي الله عنه) و.
- د قرآن کریم توروته د لومړي ځل لپاره ابو الاسود الدویلی ټکي ورکړل.
- د نړۍ نقشه د لومړي ځل لپاره "الادریس" جوړه کړه.
- د لاس سترې مه شي د لومړني ځل لپاره یمنیانو دود کړل.
- د سهار لمونځ د لومړي ځل لپاره ادم (ع) ادا کړی.
- ذ والقرنین لومړنی سړی و چې له ختیزه یې تر لویدیزه یون وکړ.
- ادریس (ع) لومړنی سړی و چې د کفارو خلاف وجنګید.
- ادریس (ع) لومړنی سړی و چې وسله یې جوړه کړ.
- ادریس (ع) لومړنی سړی و چې درزیتوب یې زده کړ.
- ادریس (ع) لومړنی سړی و چې دستورو او ریاضیاتو پوهه یې تر لاسه کړه.

- زیتون لومبنۍ ونه ده، چې د نوح (ع) تر توپان وروسته راوغوړېده.
- نمرود لومبنی سړی و چې پخه ښخته یې جوړه کړه.
- یحیی (ع) لومبنی سړی و چې په ۳ کلنۍ کې یې اسماني کتاب یاد کړ.
- څوکۍ د لومبي ځل لپاره "فرعون" جوړه کړې ده.
- "ډاکټر جوزفا" فرانسوی لومبنی سړی و، چې په کامره یې تصویر واخست.
- د لومبي ځل لپاره ابوبکرصدیق(رضي الله عنه) ته حضرت عمر(رضي الله عنه) بیعت ورکړ.
- لومبنی سړی چې قرآن یې په ایت، ایت تفسیر کړ "فرا" (رح) و.
- لومبنی سړی چې لمونځ یې نه دی کړی او جنت ته به ځي، عمرو بن ثابت دی، نوموړي د احد دجګړې په ډګر ایمان راوړ او شهید شو.
- لومبنی سړی چې په مکه معظمه کې یې قرآن په لوړ غږ ولوست عبدالله بن مسعود (رضي الله عنه) و.



# ديني معلومات

۱. د قرآن کریم لومړنی نزول په ۶۱۰ میلادي کال کې شوی.
۲. د مکي سورتونو شمېر "۸۶" او د مدني سورتونو "۲۸" دی.
۳. په قرآن کریم کې یوازې د زید بن حارث صحابي نوم راغلی.
٤. جالوت د داود(ع) پواسطه ووژل شو.
٥. داود(ع) د طالوت د لښکر سپاهي و.
٦. لومړنی سورت چې پوره نازل شو "الفاتحه" دی.
۷. وروستنی سورت چې پوره نازل شو "النصر" دی.
۸. بیت المقدس ړومبی عمر بن الخطاب ازاد کړ.
۹. نمرود د لومړي ځل لپاره د ربو بیت دعوا وکړه.
۱۰. له مکې څخه تر بیت المقدس پورې سفر ته "اسرا" وایي.
۱۱. د معراج پیښه د نبوت په ۱۲ کال د رجب په ۲۷ مه شوې.
۱۲. حضرت عثمان (رضي الله عنه) د ابوبکر صدیق (رضي الله عنه) په لاربښوونه مسلمان شو.

۱۳. د ټولو رسولانو شمېر ۳۱۳ ته رسيږي
۱٤. حضرت موسی (ع) د خضر(ع) شاګرد و.
۱۵. له حوا (ع) سره د آدم (ع) ليدنه په عرفات کې شوې
۱٦. او سپينه ږومبی داود (ع) کشف کړه.
۱۷. ابو الانبياء حضرت ابراهيم (ع) ته وايي.
۱۸. د موسی په پيدايښت سره فرعون ۹۰۰۰۰ ماشومان ووژل.
۱۹. د شعيب (ع) عمر ۳۰۰۰ يا ۳٦۰۰ کاله و.
۲۰. د مجادلې سورت په هرايت کې د الله (ج) نوم دی.
۲۱. په قرآن شريف کې له ۲۸ پيغمبرانو څخه يادونه شوې ده.
۲۲. د اقصی جومات بنسټ حضرت سليمان (ع) ايښی.
۲۳. روح الامين " د جبرائيل (ع) ستاينوم (لقب) و.
۲٤. "نجيب الله " د داوود (ع) ستاينوم و.
۲۵. "ذبيح الله " د اسماعيل (ع) ستاينوم و.
۲٦. "بحرالعلم" د حضرت عبدالله بن عباس (رضي الله عنه) ستاينوم و.
۲۷. " سيف الاسلام" د حضرت سعدابن ابی وقاص (رضي الله عنه) ستاينوم و.
۲۸. " ام العرب" د بي بي هاجرې(رض) ستاينوم و.
۲۹. د حضرت يحيی (ع) مزار په دمشق کې دی.
۳۰. حضرت موسی (ع) په مصر کې زيږيدلی.
۳۱. حضرت ادريس (ع) ۷۲ ژبې زده وې.
۳۲. حضرت سليمان (ع) د داوود (ع) زوی و.



# حدیثونه او اصحاب

* حضرت عمر (رضي الله عنه) ۵۹۳ حدیثونه روایت کړي.
* حضرت عبدالله ابن عمر (رضي الله عنه) ۲۶۳ حدیثونه روایت کړي.
* حضرت انس (رضي الله عنه) ۲۲۷۶ حدیثونه روایت کړي.
* حضرت ابوهریره (رضي الله عنه) ۵۳۷۴ حدیثونه روایت کړی دي.
* حضرت عبدالله ابن مسعود (رضي الله عنه) ۸۴۸ حدیثونه روایت کړي.
* حضرت بي بي عايشه (رضي الله عنها) ۲۲۱۰ حدیثونه روایت کړي دي.
* حضرت ابو سعيد خدري (رضي الله عنه) ۱۱۷۰ حدیثونه روایت کړي دي.
* حضرت عبدالله بن عباس (رضي الله عنه) ۱۶۶۰ حدیثونه روایت کړي.
* حضرت جابر بن عبدالله (رضي الله عنه) ۱۵۴۰ حدیثونه روایت کړي دي.

☆ عبدالله بن بشیر وروستنی صحابی دی ، چې په شام کې وفات شو.

☆ معاذ بن جبل پر حلالو او حرامو ستره پوهه درلوده .

☆ د ابو هریره(رض) اصلی نوم " عبدالرحمن فخر الدوسي" و.

☆ په مدینه منوره کې وروستی وفات شوی صحابي حضرت جابر (رضي الله عنه) دی.

☆ د حدیثو تدوین د عمر بن عبدالعزیز په وخت کې پیل شو.

☆ حضرت محمد(ص) د قرآن کریم لومړنی قاري و.

☆ د امام اعظم (رح) د نیکه نوم " زوطي" دی.

☆ دمکې فتحې ته " فتح مبین " هم وایي.

☆ د اسلام لومړنی کوچنی اختر په شوال کې د جمعې په ورځ شوی دی.

☆ ابو هریره ته د حدیثو پاچا وایي.

☆ ابراهیم علیه السلام په غار کې پیدا شوی.

☆ د بدر په غزا کې د مسلمانانو درې بیرغونه و.

☆ محمد(ص) د کډوالو بیرغ مصعب بن عمیر ته وسپاره.

☆ د خزرج قبیلې بیرغ " النذر" ته وسپارل شو.

☆ د اوس قبیلې بیرغ " سعدبن معاذ" ته ورکړل شو .

☆ " المایده " سورت د حجی الوادع پروخت رانښکته شو.

☆ د حضرت سعد بن وقاص مور حمنه، ورور یې عتبه او میرمن یې سلمی نومېده.

* د عیسی (ع) دنیا نوم "حینا" و.
* د یمامه په جنګ کې د جنګ بولندوی خالد بن ولید (رضي الله عنه) و.
* له بیرغ څخه استفاده د محمد (ص) له وخته راپیل شوه.
* د اسلام لومړنی بیرغ د بریده (رضي الله عنه) په مشوره جوړ شو.
* د ځمکې پر سر لومړنی ودانۍ کعبه شریفه ده.
* لومړی ګنډل شوې جامې حضرت ادریس (ع) اغوستې.
* هجری کال د لومړي ځل لپاره حضرت عمر (رضي الله عنه) وکاراوه.
* لومړنی موذن حضرت بلال (رضي الله عنه) دی.
* د حضرت ابو بکر صدیق (رضي الله عنه) د خلافت پروخت ۷۰۰ حافظان شهیدان شول.
* حضرت عمر (رضي الله عنه) بقره سورت په ۱۲ کالو کې یاد کړی و.
* حضرت عثمان (رضي الله عنه) په یوه رکعت کې ټول قرآن لوستی دی.
* حضرت تمیم (رضي الله عنه) او امام اعظم (رح) هم په یوه رکعت کې ټول قرآن لوستی دی.
* امام اعظم (رح) په روژه کې ۶۱ ځله قرآن کریم ختماوه.
* حضرت غوث الاعظم (رح) تر لسو کالو هره شپه د قرآن کریم ختم کاوه.
* د قرآن کریم په وروستی سیپاره کې ۳۷ سورته دي.
* د قرآن کریم "فلق" او "الناس" سورتونه یو ځای نازل شوي

# د معلوماتو له نړۍ څخه

- د ورځې ۳۲ رکعته لمونځ ادا کیږي.
- په یوه اونۍ کې ۲۲۴ رکعته ادا کیږي.
- په یوه میاشت کې ۹۶۰ رکعته لمونځ ادا کیږي.
- په پنځه وخته لمانځه کې ۱۸۲ ځله الله اکبر ویل کیږي.
- په یوه میاشت لمانځه کې ۵۴۶۰ ځله لوستل کیږي.
- د یوه کال په لمانځه کې ۶۵۵۶۰ ځله الله اکبر لوستل کیږي.
- په پنځه وخته لمانځه کې ۹۶ ځله سبحان ربی العظیم ویل کیږي.
- په یوه اونۍ کې ۶۷۲ ځله لوستل کیږي.
- په یوه میاشت لمانځه کې ۲۸۸۰ او په یوه کال لمانځه کې ۳۳۵۶۰ ځله سبحان ربی العظیم لوستل کیږي.
- په پنځه وخته لمانځه کې ۱۹۲ځله سبحان ربی الاعلی ویل کیږي.
- په یوه اونۍ کې ۱۳۴۴ ځله ویل کیږي.
- په یوه میاشت لمانځه کې ۵۷۶۰ او په یوه کال لمانځه کې ۱۹۱۲۰ ځله سبحان ربی الاعلی لوستل کیږي.
- یحیی (ع) درې کلن و چې تورات یې یاد کړی.
- امام شافعی (رح) په ۷ کلنۍ کې قرآن کریم یاد کړی و.
- حضرت سهیل بن عبدالله بن عمینه په ۶ کلنۍ کې قرآن شریف یاد کړ.
- حضرت امام بن حسن (رح) په ۷ ورځو کې قرآن کریم حفظ کړی و.
- حضرت هشام بن کلبی (رح) په ۳ ورځو کې قرآن کریم حفظ کړی و.



# انسان او پر معلوماتو کڅوره!

* د انسان سکلیټ له ۲۰۶ هډوکو څخه جوړ شوی.
* انسان په یوه دقیقه کې ۲۰۰ متره واټن وهي، ۴۰۰ متره واټن په منډو طی کوي، ۱۵۰ خبرې کوي، ۴۰ کلیمې لیکي، ۴۱۰ انچه هوا سږو ته داخلوي او زړه یې شیر یانونو ته اووه لیټره وینه لېږدوي.
* د انسان د بدن انرژي که په بریښنایي انرژي بدله شي، کولی شي دوه دقیقې ۶۰ ولټه ګروپ بل وساتي.
* د انسان په بدن کې دومره تودوخه ده ، چې که په کار واچول شي دوه پیالې چای پرې تودولی شو.
* یو انسان د خپل عمر په اوږدو کې نژدې یو لك پیالې چای څښي.
* یو ۷۰ کلن انسان د عمر په اوږدو کې سل کاله خوب کوي.
* د انسان سترګه پر یو وخت ۱۰۰۰۰ ستوري لیدلی شي.
* د مږي د بدن تودوخه د هغه د چاپیریال په کچ وي.
* انسان او بیزو یوازیني ژوي دي، چې په زکام ناروغی اخته کیږي.

* د انسان تر مړینې وروسته د هغه زړه ۲۰ دقیقې ژوندی وي.
* د انسان په بدن کې نژدې ۲۵ لکه سوري دي.
* د انسان په یوه لاس کې ۳۰ هډوکي دي.
* د انسان زړه تقریباً ۱۲ اونسه وزن لري.
* د انسان تر ټولو ستر هډوکي د ورانه هډوکي دي.
* د انسان وجود ۶۵ په سلو کې اوبه لري.
* د انسان وجود ۶۲۰ عضلې لري.
* د انسان ځیګر ته کیمیاوي فابریکه وایي.
* د انسان ویښتان په کال کې ۱۶ انچه وده کوي.
* د انسان نوکان په کال کې ۲/۵ انچه وده کوي.
* د انسان مغز له ۳ پونډو څخه تر ۱۴ کیلو ګرامو پورې رسي.
* د انسان څېره له ۱۴ هډوکو جوړه ده.
* د انسان د سر کوپړۍ ۲۲ هډوکي لري.
* د انسان په اوږو کې دوه هډوکي دي.
* د نارینه و مغز تر ښځو زیات وي.
* د انسان زړه د ورځې له ۱۰۰۰ څخه تر ۱۵۰۰ ګیلنو پورې وینه پمپوي.
* انسان په یوه کال کې تقریباً ۳۰ منه اوبه څښي.



* انسان په کال کې ۹۰ لکه ځله سترګې رپوي، په دي حساب هر کال د انسان سترګې رپول ۱۲۰۰ میله واټن طی کوي.
* هر منځنی سړی په کال کې یو ټن خوراك کوي.
* د کیڼ لاس نوکان ترښي لاس زر وده کوي.
* دغوسې پر وخت د انسان (۱۳۴) اعصابه کار کوي.
* د خندا پر مهال د انسان ۱۶ عصبه کار کوي.
* د انسان د وینې وزن له څلورنیمو تر پنځو کیلو پوري دی.
* د انسان ویښتان په کال کې ۱۶ انچه غځیږي.
* د انسان د بدن ټول ویښتان په اټکلي توګه اته لکو ته رسي.
* د انسان په پښتو رګو کې ۱۱۲۰۰ کیلو متره نري رګونه دي.
* د یوې خبرې په کړلوسره د انسان ۷۲ غړی کار کوي.
* یو تندرست سړی په دقیقه کې ۱۶ ځله سا وباسي.
* د انسان د نوکانو شمېر په حقیقت کې څلویښت دی.
* انسان په ټول عمر کې ۵۰۰۰ ټنه ډوډۍ خوري.
* یو انسان په ټول عمر کې ۵۰۰۰ کیلو سبزي خوري.
* یو انسان ټول عمر ۲۰۰۰ کیلو غوښه خوري.
* د انسان په جسم کې ۲۴ پښتۍ دي.
* د انسان د تودوخې عادي درجه ۹۸/۴ فارنهایټ ده.
* د انسان تر ټولو قوي غړی زړه دی.

* د انسان په وجود کې د حواسو ملکه سترګې ته وايي.
* د انسان په وجود کې تر ټولو حساس غړی لاس دی.
* د نوي پیدا شوي ماشوم زړه په دقیقه کې ۱۴۰ ځله درزیږي.
* د انسان په بدن کې ۶۰۰۰۰۰۰۰۰۰۰ حجرې دي.
* د انسان منځنی قد ۵ فټه او ۹ انچه دی.
* د انسان زړه په ورځ کې ۱۰۳۶۸۰ ځله او په یو کال کې ۳۵ ملیونه ځله درزیږي.
* د انسان وینه په یوکال کې ۶۱۳۲۰ میله واټن وهي.
* د انسان دماغ د یوې ثانیې په سلمه برخه کې یو خبر دماغ ته وړي.
* د انسان په وجود کې ۳۰۰ ویالې دي چې بدن ته وینه برابروي.
* انسان په ورځ کې ۲۵۰۰۰ ځله سا وباسي.
* د انسان تر مړینې وروسته ،غوږونه یو ساعت ژوندي وي.
* د انسان د مړینې پر مهال دهغه له وجوده ۶۰ ولټه کروپ بلیدای شي.
* د انسان د مړینې پر وخت دهغه له وازدې ۷ صابونونه جوړیدلای شي.



# يو نظر د ساينس نړۍ ته

۱. "ارنست وترفورد" د لومړي ځل لپاره په ۱۹۱۱ز کال کې "اتوم" وموند.

۲. لومړی "مقناطیسی ټیپ" په ۱۸۹۹ کال په ډنمارك کې د "وال پاولن" په لاس جوړ شو.

۳. "راډیو" د ړومبي ځل لپاره په ۱۸۷۳ز کال د جمیز انګریز لخوا جوړه شوه.

۴. "یخچال" په ۱۸۵۰ز کال د امریکا په متحده ایالاتو کې "الکساندر ټوننګ" جوړ کړ.

۵. باروت په ۷۰۰ز کال په چین کې جوړ شول.

۶. اکسیجن په ۱۷۷۴ کال د ړومبي ځل لپاره "جوسف پراتیلی" وموند.

۷. د چاپ ماشین ړومبی ځل په ۷۰۰ز کال په جاپان کې "جوهانبرګ" را منځته کړ.

۸. "کامره" د ړومبي ځل لپاره امریکایي ساینسپوه "ارون لند" په ۱۸۸۸کال اختراع کړه.

۹. "د کوکاکولا" فارمولا د ړومبی ځل لپاره په ۱۸۸۸ز کال د "جان پمبرټن" لخوا رامینځته شوه.



۱۰. تلویزیون د رومبي خل لپاره په ۱۹۲۱ کال امریکایي ساینسپوه "بیرید" اختراع کړ.

۱۱. "ټیلیګراف" د رومبي ځل لپاره په ۱۸۳۷ز کال امریکایي ساینسپوه "سمیول مورس" اختراع کړ.

۱۲. د بوټ ګنډلو ماشین په ۱۸۶۰ ز کال امریکایي ساینسپوه اختراع کړی دی.

۱۳. سمندري بیړۍ په ۱۸۹۱ز کال امریکا او هالنډ اختراع کړې ده.

۱۴. "ستاټسکوپ" په ۱۸۱۹ز کال "لیني" فرانسوی جوړ کړی دی.

۱۵. تومانچه په ۱۸۳۵ کال امریکایي ساینسپوه "هو" جوړه کړې.

۱۶. د درزیتوب ماشین په ۱۸۳۰کال "ټیمرني" فرانسوي ساینسپوه جوړ کړی.

۱۷. ټیلیفون په ۱۸۷۶ کال انګلیسی ساینسپوه "بل" جوړ کړی دی.

۱۸. الکترون په ۱۷۷۲ز کال د "شیلی سومډني" لخوا کشف شو.

۱۹. کلوریټ "شیلي" سویډني موندلی دی.

۲۰. د اکسیجن ګاز نوم "انطوني" ایښی دی.

۲۱. زمرود ، یاقوت اولال د المونیم مرکبات دي.

۲۲. تیزاب پرپلا تینیم هیڅ اغیز نه کوي.

۲۳. نایټریټ اکسایډ ګاز د خندا په ګاز مشهور دی.

۲۴. په وچ کاغذ کې لس په سلو کې اوبه وي.

۲۵. لیتیم تر ټولو سپک عنصر دي.

۲۶. د نړۍ نور ماله درجه ۵۹ فارنهایټ ده.

۲۷. زهره ته د ځمکی خور وایي.

۲۸. لوګی تر هوا سپك او کم وزنه دی.

۲۹. سپوږمۍ دیوه کال په اوږدو کې ۱۳ ځله پر ځمکه راځرخي.

۳۰. د ځمکې مساحت ۱۹۶۸۳۶۰۰۰ مربع میله ته رسي.



۳۱. د ځمکې وچه برخه ۵۵۷۸۶۰۰۰ مکعب میله ته رسي.

۳۲. د ځمکې حجم ۲۵۹۹۰۲۲۳۷۰۰۰ مکعب میله ته رسي.

۳۳. د ځمکې وزن ۵۹۸ . ۱۰۲ میتریك ټنه دی.

۳۴. د ځمکې قطر (په استوا کرښه کې) ۷۹۲۶/۵ مربع میله دی.

۳۵. د ځمکې قطر (په قطبینو کې) ۷۹۰۰ میله دی.

۳۶. په استوا کرښه کې د ځمکې محیط ۲۴۹۰۲/۵ مربع میله دی.

۳۷. په قطبینو کې د ځمکې محیط په ګینټه کې ۲۶۸۶۰/۵ میله دی.

۳۸. پر خپل محور (چورلیځ) د ځمکې خوځښت په یوه ګینټه کې ۱۰۰۰ میلو ته رسي.

۳۹. پر لمر د ځمکې راڅرخېدا په یوه ګینټه کې ۶۶۶۰۰ میله ده.

۴۰. پر یوه موډرنه الوتکه کولای شو په ۱۹ کالو کې لمر ته ورسو.

۴۱. لمر په یوه ثانیه کې څلور ملیونه ټنه هایدروجن سوزوي.

# د لمریز نظام په هکله یو څه معلومات

۱. د عطارد یوه ورځ د ځمکې له ۵۹ ورځو، او یو کال یې د ځمکې له ۸۸ ورځو سره برابر دي.

۲. د زهره یوه ورځ د ځمکې له۲۴۳ ورځو او کال یې له ۲۲۵ورځو سره برابر دي.

۳. د مریخ یو ساعت د ځمکې له ۲۴۲/۱ ساعتو او یو کال یی د ځمکې له ۳۸۷ ورځو سره برابر دي.

۴. د مشتري یوه ورځ د ځمکې لس ساعته او کال یې د ځمکې له ۱۲ کلو سره برابر دی.

۵. د زحل یوه ورځ د ځمکې له ۱۰ ساعتو او یو کال یې د ځمکې له ۲۹ کلونو سره برابر دی.



۶. د اورانوس یوه ورځ د ځمکې له ۱۱ ساعتونو او یو کال یې،
د ځمکې له ۸۴ کلو سره برابر دی.

۷. د نپتون یوه روځ د ځمکې ۱۶۰ ساعته او یو کال یې د
ځمکې له ۱۶۵ کالو سره برابر دي.

۸. د پلوتون یوه روځ د ځمکې له ۶ ساعتو او یو کال یې د
ځمکې له ۲۴۸ کلو سره برابر دي.

۹. که څه هم لمر تر ځمکې ۱۳ لکه ځله غټ دی خو د ډېرو نورو
ستورو په پرتله ډېر وړوکی دی.

۱۰. په کهکشانو کې د ستورو او سیارو تر منځ واټن په نوری کال
محاسبه کیږي، چې عبارت دي له ۳۶۰ . ۲۴ . ۶۰ . ۶۰
۳۰۰۰۰۰ کیلو متره.

۱۱. داسي ستوري هم شته چې له موږ نه په ملیونونو نوري کاله
لرې دي.

۱۲. که وکولای شو په یوه دقیقه کې ۳۰۰ ستوري وشمېرو نو د
ټولو ستورو د شمېرلو لپاره ۳۵۰۰ کاله عمر پکار دی.

۱۳. زموږ په کهکشان(ستورټولنیز) کې سل ملیونه لمره شته چې
په ملیونونو نورې سیارې هم وجود لري.



۱۴. له هرو ۶۰۰ مليونه اسماني سيارونه په يوه کې د ژوند کولوامکان شته چې په دی حساب په زرګونو دهستوګنې وړ سيارې دي، چې ځمکه يوه له هغونه ده.

۱۵. له ځمکې نه تر ټولو لويه سياره په "دب اصغر" کې ده چې له موږه ۱۴ مليارده نوري کاله واټن لري.

۱۶. لمر لس مليونه کاله نور هم رڼا ورکولی شي.

۱۷. په لمريز نظام کې سل مليونه نور ستوري اوسي.

۱۸. د يوې شپې او روځې اوږدوالی په پيړی کې ۲ زره ثانيې زياتيږي، چې ديوی ورځې اوږدوالی يو کال کيږي.

۱۹. دستورو دخوځښت منځنی سرعت په ثانيه کې لس کيلو متره دی.

۲۰. د مياشتې "سپوږمی" قشر د ځمکې له قشره غټ دي.

۲۱. د ځمکې په ۲۵۰ متره ژورتياکې د تودوخې درجه سلو ته رسي، چې اوبه خوټوي.

۲۲. د ځمکې عمر تر ۱۵۴۳۰۰۰۰۰۰ کالو پورې رسيږي.

۲۳. لومړنی مصنوعي سپوږمی روسانو جوړه کړه.

۲۴. لومړنی انسان "ګاګارين" و ،چې فضا(تشيال) ته وخوت.

۲۵. لومړنی خلا باز امريکايي الګن شپرد و.

۲۶. د مياشتې د تودوخې درجه ۲۰۰ فارنهايټ ده.

۲۷. "لائکا" سپی په خلا کې ۴ ورځې ژوندی و



۲۸. د زهرې د تودوخې درجه ۴۸۰ سانتې ګريډه ده.

۲۹. د مريخ د تودوخې درجه ۲۳ سانتې ګريډه ده .

۳۰. د مشتري د تودوخې درجه ۱۵۰ سانتې ګريډه ده .

۳۱. د اورانوس د تودوخې درجه ۲۱۰ سانتې ګريډه ده .

۳۲. دعطارد د تودوخې درجه ۴۵۰ سانتې ګريډه ده .

۳۳. د زحل د تودوخې درجه ۱۸۰سانتې ګريډه ده.

۳۴. د پلوتون د تودوخې درجه ۲۳۰ سانتې ګريډه ده .

۳۵. د ځمکې د تودوخې درجه ۱۸ سانتې ګريډه ده .



# په زړه پورې معلومات

۱. تر ټولو غښتلی او ځواکمن کب "جابنټ وی" نومیږي.

۲. د "دی آنا" ښار ته د نغمو او سندرو ښار وايي.

۳. د لومړني فرعون نوم "میلنس" ؤ.

۴. "کارنیکګرو جان هرټن" امریکايی دورځې ۱۲۰۰ مړه

خوراك او ۱۲ لیټره اوبه څښبی.

۵. ۱۴۵ کلن ایراني عباس چکر ۳۶ ښځې په نکاح اخستې وې.

۶. د "مالګې مرچ" په نوم ورځپاڼه له پاریسه چاپیږي.

۷. د موټر چلولو مشهور لوبغاړي "جم کلارك" ۱۵۳ کپونه ګټلي.

۸. په فرانسه کې هر کال ۱۵۰۰۰ ټنه ژاولې ژوول کیږي.

۹. شکسپیر ټولې ۲۷ ډرامې لیکلې.

۱۰. چترۍ د لومړي ځل لپاره روس جوړه کړې ده.

۱۱. د "مس پرسی پرل" وزن ۸۸۰ پونډه ؤ.

۱۲. د عمان او ښان د نړۍ مشهور اوښان دي.

۱۳. دجرمني د استخباراتو شبکه D.N.P نومیږي.

۱۴. د نړۍ تر ټولو اوږد غار "سمپلسن" دی.

۱۵. له ۶۰۰۰ ګلونو څخه د شاتویو څاڅکی جوړیږي.

۱۶. د نړۍ لومړنی "کالیزه" د بابل اوسیدونکو جوړه کړه.

۱۷. د ابو جهل یوه خور صحابیه وه چې عسکر یه نومېده.

۱۸. ابوبکر صدیق ﷺ د رخت تجارت کاوه.

۱۹. صفی الله د حضرت ادم (ع) لقب(ستاینوم) و.

۲۰. د ادریس (ع) د پلار نوم "بارد" و.

۲۱. "اخنوع" د ادریس (ع) اصلی نوم و.

۲۲. د محمد بن قاسم اصلي نوم "عماد الدین" و.

۲۳. د ابو الهیثم اصلي نوم "ابو علي حسن" و.

۲۴. د سلطان صلاح الدین ایوبي اصل نوم "یوسف" و.

۲۵. د ابن بطوطه اصل نوم "ابو عبدالله محمد" و.

۲۶. د چنگیز خان اصل نوم "تموچین" و.

۲۷. د مهاتما گاندي اصل نوم موهن داس کرم چند" و.

۲۸. باروت مسلمانانو جوړ کړي دي.

۲۹. دوهم یزدګرد پښتون واکمن "ماهویه سوري" وواژه.

۳۰. د نړۍ تر ټولو سترګرځند خوړنځی په عربستان کې دی. چې دوه منزله لري او ۵ متره جګ دی.

۳۱. دنړۍ کوچنی الماس په لندن کې دی چې په سترګو نه لیدل کیږي.

۳۲. د جاپان پاچا "سوکوکو" په خپله وینه ۱۳۵ پاڼې ولیکلې.

۳۳. په ۱۹۱۷ زکال په روسیه کې یوې چرګې هګۍ واچوله چې ۹ رنګه زیړیې درلودل.

۳۴. د نړۍ تر ټولو ژور کوهی ۶۵۰۰ متره ګروب (ژور) دی.

۳۵. د غالی اوبدلو ماشین د لومړي ځل لپاره په بروکسل کې جوړ شو.

۳۶. د هار مونیکا جوړوونکی " بنیامین فرانکلن" دی.

۳۷. د باجې جوړوونکی " جوزف" دی.

۳۸. مرجان د ساکښوله ډلې ځخه ګڼل کیږي.

۳۹. د نړۍ تر ټولو مشهورې ګیدړۍ Manx دي.

۴۰. چینایي ژبه ۱۱۴ توري لري.

۴۱. لمر له هایدروجن او هلیوم څخه جوړ شوی دی.

۴۲. د ډالر زوړ نوم " تالر" وو.

۴۳. د پاکستان لومړنۍ ښځینه انجینیره صفیه حلیم وه.

۴۴. د شاه جهان اصلي نوم شهاب الدین و.

۴۵. د پاکستان لومړنۍ ښځینه خلا بازه " شکریه خانم" ده.

۴۶. ښځو ته د لومړي ځل لپاره مصر درایې حق ورکړ.

۴۷. البیروني ته د " مسعودي قانون" پر کتاب یو اوښ سپین زر ورکول کیدل خو ویې نه غوښتل.

۴۸. شکسپیر لومړنۍ ډرامه په ۱۵۹۲م کال ولیکله.

۴۹. په " مړه سمندرګی" کې هیڅ ژوي نه ډوبیږي.

۵۰. د اقصا جومات د "لرې مسجد" مانا ورکوي.

۵۱. مملکت المغربیه د مراکش دولتي نوم دی.

۵۲. شپه او روځ ، عربانو په ۱۲-۱۲ ساعتونو وویشل.

۵۳. د نړۍ غټ ګروپ جاپان جوړ کړی چې ۵۰۰ کیلوواته و.

۵۴. له فضا څخه د ۳ راغلیو امریکایانو قدونه دوه دوه انچه غټ شوی و

۵۵. په افریقا کې تر ټولو ستره ونه د "باډباب" ونه ده.

۵۶. په یو ساعت کې ۹ ملیونه او یو لك لیکونه تبادله کیږي.

۵۷. په یو ساعت کې نژدې ۲۱ منه تمباکو کارول کیږي.

۵۸. په یو ساعت کې ۷۱۹۸۵ ټنه کاغذ په ورځپاڼو کې استعمالیږي.

۵۹. په یو ساعت کې ۷۰ ملیونه پیالي قهوه څښل کیږي.

۶۰. دنړۍ تر ټولو ستره ونه د امریکا په نشنل پارك کې ده چې که په اورلګیت(ګوګړو) بدله شي، د نړۍ ټولو وګړو ته به یویو ترې ورورسیږي.

۶۱. بانکنو ټونه د لومړي ځل لپاره په چین کې دود شول.

۶۲. د نړۍ تر ټولو زوړ بیرغ د ډنمارك دی.

۶۳. د مصر پخوانی ولسمشر انورالسادات د خالد اسلامبولي لخوا ووژل شو.

۶۴. شیخ تقی الدین بعلبکی په څلورو میاشتو کې ټول مسلم شریف یاد کړ، د جمع بین الصحیحین حافظ هم و. د انفال سورت یې په یوه ورځ کې یاد کړ.

۶۵. ابن جوزی ۲۰۰۰ ټوکه کتابونه پخپلو ګوتو لیکلي چې ۲۵۰ یې خپل تالیفات و.

۶۶. په صلیبي جګړو کې ۶۰۰۰۰۰ عیسویان ووژل شول.



۱۲۴. سردارمحمد داوودخان دلومړي بريدمن امام الدين لخواوويشتل شو.

۱۲۵. پاکستانی ساینسپوه عبدالقدیر خان او فتح علي خان افغانان دي.

۱۲۶. په یوه عادي پنسل سره ۳۵ میله کربنه ایستل شي.

۱۲۷. نمرود لومړنی سړی دی چې پخه خښته يې جوړه کړه.

۱۲۸. د نړۍ تر ټولو ډېر ښوونځي په شیکاګو کې دي.

۱۲۹. د نړۍ تر ټولو زوړ ښار د دمشق ښار دی.

۱۳۰. په منځني کچ په نړۍ کې هر ساعت ۱۶۵۰ ودونه تر سره کيږي او ۱۰۰ ښځې طلاقيږي.

۱۳۱. صلاح الدين ايوبي په ۵۸۳ کال د رجب په میاشت کې د جمعې په ورځ فلسطين ونيو.

۱۳۲. د شيطان اصلي نوم "ابليس "او په بل روایت "عزازيل" دی.

۱۳۳. مالتا "ټاپو" په ۲۵۵ کال مسلمانانو ونيو.

۱۳۴. "الازهر پوهنتون" په ۹۷۲ کال د "فاطميانو" لخوا جوړ شو.

۱۳۵. د مثلثاتو پوهه مسلمانانو رامنځته کړي ده.

۱۳۶. صفر د رومبی ځل لپاره مسلمانانو دود کړ.

۱۳۷. دسومنات بوت د هند سمندر کي په کاسیا وارسیمه کې اینبودل شوی و.

۱۳۸. طارق بن زياد، د موسی بن نصير غلام و.

۱۳۹. د امام غزالي اصلي نوم صاحب محمد دی.

۱۴۰. د هند په تاریخ کې لومړنی مسلمان پاچا افغان محمد غوری و.

۱۴۱. اسپانیا دولید بن عبدالمالك د واکمنۍ پروخت ونیول شوه.

۱۴۲. د جمهوری حکومتونو بنسټ له یونانه پیل شوی دی.

۱۴۳. مشهور امریکایی سیلانی "کرستوفر کلمب" تر مړینې وروسته اته ځله ښخ شو اورا وایستل شو.

۱۴۴. په نایجریا کې د "توراخ" قبیلې نارینه چادري او نقاب اغوندي.

۱۴۵. "راین بو" ماران چې هګۍ واچوي، پر ځمکه وده کوي او غټیږي.

۱۴۶. په اندونیزیا کې بې لکۍ پیشوګاني موندل کیږي.

۱۴۷. "سن فش" کب ۴۹۲۸ پونډه وزن لری او ۱۴ فټه اوږد دی.

۱۴۸. په نړۍ کې تر ټولو باراني سیمه "اسام چراینجي" ده.

۱۴۹. خلا ته تر ټولو لومړی د روس بیرغ استول شوی.

۱۵۰. د بنګله دیش قامی ګل نرګس ګل دی.

۱۵۱. د امریکا د ډیموکراتیك ګوند نښان "خر" دی.

۱۵۲. په نړۍ کې تر ټولو ډېر ژبی هېواد هند ګڼل شوی.

۱۵۳. دنړۍ تر ټولو ستر سرکس د امریکا په "لاس ویګاس" کې دی چې په ۱۲۹ زره مربع فټه ځمکه کې غځېدلی دی، ددغه سرکس چت په ښیښو پوښل شوی او په یو ملیارد ډالره لګښت د ۱۹۶۸ کال د مارچ په ۱۸ مه پرانستل شو.

۱۵۴. د پاکستان یوه انځورګر "غلام مصطفی صادق" د وریژو له

دانو څخه یوه ښایستوکې کلیمه جوړه کړه، او د سعودي د هغه

وخت پاچا "شاه فیصل" ته یې د سوغات په توګه واستوله.

۱۵۵. د نړۍ تر ټولو بده کاختي د چین په شمالي سیمو کې له

۱۹۶۱ څخه تر ۱۹۶۹ زیږیځ کال روانه وه چې ۳۰ ملیونه خلک

یې د مرګ کومې ته ورکړل.

۱۵۶. د نړۍ تر ټولو ستر ګل د امریکا په "هیډ کیټال" کې دی چې

"۱۴" فټه اوږدوالی لري.

۱۵۷. د نړۍ تر ټولو ستر چیلم د جرمني په یوه لرغونتون کې دی،

دا چیلم ټول ۵ متره جګوالی لري د چیلم په "سرخانه" کې ۳ کیلو

تمباکو ځاییږي.

۱۵۸. د نړۍ ترټولو ستر دسترخوان په شیکاګو کې غوړول شوی و،

دغه دسترخوان په ۱۸۸۸ز کال کې غوړیدلی و او ۲ کیلو متره

اوږدو، پر دستر خوان په یوه وخت کې ۱۷ زره تنو ډوډۍ خوړلې

شوه او په یوه ورځ کې د شیکاګو ټولو وګړو پرې ډوډۍ وخوړه.

۱۵۹. د بریتانیا د "ګایي لینډ" په سیمه کې په ۱۹۷۹ کال د درې

ګینټو لپاره پرله پسې د بوډۍ ټال" رنګین کمان" ښکاریده. چې

دا تر ټولو ډېرمودیز رنګین کمان و.

# د ژوو له نړۍ څخه

+ د نړۍ تر ټولو غټ حیوان Blacle whale دی چې ۱۰۰ متره اوږدوالی او ۱۵۰ زره کیلو ګرامه وزن لري.
+ د نړۍ تر ټولو جګ ژوی زرافه ده چې ۲۰ فټه جګه ده
+ د نړۍ تر ټولو کوچنی ژوی Protozoom دی.
+ زیات عمري ژوی کیشپ (شمشتی) دی چې تر ۲۵۰ کالو ژوند کوي.
+ د نړۍ تر ټولو ګړندی مرغه Swift نومیږي چې له اورګاډي سره سمه ځغاسته کولای شي.
+ " همك " مرغه د ښکو او مخ پر ځای د لکۍ په لور الوزي .
+ " زر داستان" د هغو الوتونکو له ډلې څخه ګڼل کیږي چې ځاله نه لري.
+ د تاووس مرغه خوراك " ماران" دي.
+ کیوي یو ډول مرغه دی چې الوتلی نشي.
+ تر ټولو ستر اژدها د مالیزیا پر ځمکه موندل کیږي.
+ اوښ په خوله کې ۳۴ غاښونه لري.
+ د کب سترګې تل خلاصې وي. ځکه کبان بانه نه لري.
+ بیزو دوه دماغه لري.
+ د ځارویو تر ټولو ستر مرکز په شیکاګو کې دی.
+ " کانګرو" یوازینی ځاروی دی چې غټ غټ ټوپونه اچوي.
+ د مرغانو زړه په دقیقه کې ۵۰۰ ځله درزیږي.
+ کوترې پرته له سر جګولو اوبه څښې.
+ په نړۍ کې اووه لکه ډوله حشرات دي.
+ په نړۍ کې ۲۳۶ ډوله کبان وجود لري.

# د حیواناتو د بدن تودوخه

د حیواناتو د بدن تودوخه

- د اس د بدن تودوخه ۹۹ فارنهایټ درجې ده.
- د زمري دبدن تودوخه ۹۹ فارنهایټ درجې ده.
- دفیل د بدن تودوخه ۱۰۰ فارنهایټ درجې ده.
- د موږك دبدن تودوخه ۱۰۲ فارنهایټ درجې ده.
- د سپي د بدن تودوخه ۱۰۲ فارنهایټ درجې ده.
- د پیشو د بدن تودوخه ۱۰۲ فارنهایټ درجې ده.
- د بیزو د بدن تودوخه ۱۰۴ فارنهایټ درجې ده.
- د چرګ د بدن تودوخه ۱۱۱ فارنهایټ درجې ده.
- د هیلۍ د بدن تودوخه ۱۱۱ فارنهایټ درجې ده.

## دستوریو تودوخه

- د "زهرې" د تودوخې درجه ۴۸۰ سانتي ګرید ده.
- د "مریخ" د تودوخې درجه ۲۳ سانتي ګرید ده.
- د "مشتري" د تودوخې درجه ۱۵۰ سانتي ګرید ده.
- د "اورانوس" د تودوخې درجه ۲۱۰ سانتي ګرید ده.
- د "عطارد" د تودوخې درجه ۴۰۰ سانتي ګرید ده.
- د "زحل" د تودوخې درجه ۱۸۰ سانتي ګرید ده.
- د "پلوتون" د تودوخې درجه ۲۳۰ سانتي ګرید ده.
- د "ځمکې" د تودوخې درجه ۱۸ سانتي ګرید ده.



## دشنیلیو "نباتاتو" په اړه

۱. د نړۍ تر ټولو ستر ځنګل په سایبریا کې دی.

۲. د انځرو د ریښې ریکارډ په افریقا کې دي، چې ۴۰۰ فټه لاندې تللې.

۳. د نړۍ تر ټولو ستره ستپه د "وافیایم" ونې ده.

۴. د نړۍ د غټې مڼې ریکارډ له بریتانیا سره دی چې ۳ پونډه وزن یې لاره.

۵. د شلغم د دروندوالي ریکارډ ۷۳ پونډه ښودل شوی.

۶. د مولۍ د دروندوالی ریکارډ له استرالیا سره دی چې ۲۵۰ پونډوته رسیږي.

۷. د بانس" لرګی د اوږدوالي ریکارډ له هند سره دی چې "۱۲۱۵" فټه اوږد و.

۸. د ګلپي د دروندوالي ریکارډ ۱۴ پونډه دی.

۹. په ۱۹۷۹ کال په انګلستان کې ۳۵ پونډه شلغم پیدا شوي وه.

۱۰. تر ټولو درونډ سور بانجان ۷ کیلو ښودل شوی.

۱۱. د نړۍ تر ټولو ګرانبیه ونه په امریکا کې دمڼوونه ده چې په ۱۵۰۰۰ ډالرو وپلورل شوه.

۱۲. د نړۍ تر ټولو غټ ناشپاتی په استرالیا کې وُ چې ۳۶۹ پونډه درونډ وُ.

۱۳. د نړۍ تر ټولو غټ پیاز ۶ پونډه ښودل شوی.

۱۴. په برتانیا کې د ترټولو غټې سنترې دروندوالی ۴ پونډه وُ.

۱۵. د نړۍ تر ټولو کوچنی ګل د "ډک ویډ" په نوم یادیږي.

۱۶. مالټا د لومړی ځل لپاره په سپین کې وپیژندل شوه.

- د نړۍ تر ټولو لوی هیواد "چین" دی.
- د نړۍ تر ټولو ګڼ وګړی ښار "نیویارك" دی.
- د نیویارك د وګړو شمیر ۱۶۴۸۷۹۵۰۰۰ دی.
- د نړۍ تر ټولو لوړه څوکه د "ایورسټ" ده چې له سمندر څخه ۸۸۴۸ کیلومتره لوړه ده.
- د نړۍ تر ټولو ژوره سیمه ۱۱۰۸۳ متره ده.
- د وګړو له مخې تر ټولو کوچنی هیواد واتیکان دی چې ۱۲۵۰ اوسیدونکي لري.
- د نړۍ تر ټولو ستر کوهی د امریکا "ګرین برګ" دی.
- د نړۍ تر ټولو ستره ګالري په روسیه کې ده.
- د نړۍ د اورګاډي تر ټولو ستر پل په فرانسه کې دی.
- د نړۍ تر ټولو ستر موزیم "برټش" موزیم دی.

۱. د نړۍ تر ټولو لوړ تیراژه ورځپانه "ټایم" ورځپانه ده.



۲. د اورګاډو تر ټولو ستر تمځای د نیویارک "سنټر ترمینل" دی. چې په ۲۴ ګینټو کې ۲۵۰۰ اورګاډي ورته راځي او ځي.

۳. د نړۍ تر ټولو ستره بېړۍ په انګلستان کې د ملکې "الیزابټ" ده.

۴. د نړۍ تر ټولو ستر پل د کډني پل دی.

۵. د نړۍ تر ټولو غټ زنګ په ماسکو کې "ګریټ بېل" زنګ دی.

۶. د نړۍ تر ټولو ستر مایکروسکوپ په کالیفورنیا کې دی.

۷. د نړۍ تر ټولو ستر ګل په اندونیزیا کې دی چې ۱۱ کیلو ګرامه وزن لري.

۸. د نړۍ تر ټولو ستر روغتون په امریکا کې دی.

۹. د نړۍ تر ټولو لوی هېواد سوډان او ورکوټی مالدیپ دی.

۱۰. د نړۍ د تیلو تر ټولو ستره زېرمه "غواد" ده.

۱۱. د نړۍ تر ټولو ستر پوهنتون په روسیه کې دی.



# تر ټولو زیات

۱. د نړۍ تر ټولو زیات ربړ په مالیزیا کې دی.
۲. د نړۍ تر ټولو زیات سیمنټ په روسیه کې دی.
۳. د نړۍ تر ټولو زیات جست په کاناډا کې دي.
۴. د نړۍ تر ټولو زیات چای په هند کې کرل کیږي.
۵. د نړۍ تر ټولو ډېرې وریژې په چین کې کرل کیږي.
۶. د نړۍ تر ټولو ډېر سره زر په سویلي افریقا کې دي.
۷. د نړۍ تر ټولو ډېر سپین زر په مکسیکو کې دي.
۸. د نړۍ تر ټولو ډېر فلم جوړوونکی هېواد هند دی.
۹. د نړۍ تر ټولو چاغ سړي په جرمنی کې اوسي.
۱۰. د نړۍ د تیلو تر ټولو زیات تولیدوونکی هېواد عربستان دی.
۱۱. په نړۍ کې تر ټولو زیات جوماتونه په بنګله دیش کې دي.
۱۲. په نړۍ کې تر ټولو زیات "خره" په هند کې دي.
۱۳. د نړۍ زیات تمباکو په چین کې کرل کیږي.
۱۴. د نړۍ تر ټولو زیات کبان، جاپان صادروي.
۱۵. د نړۍ تر ټولو زیات ښوونځي په شیکاګو کې دي.

# هغوی چې اوږده عمرونه یې لرل

۱. "جوربرت" د کاناډا اوسیدونکی و، نوموړی پر ۱۷۰۱ ز کال پیدا شو او پر ۱۸۱۴ ز کال ومړ، نوموړي ۱۱۳ کاله او ۱۲۴ ورځې عمر درلود.

۲. "جان بی سالنګ" د امریکا اوسیدنکی و، نوموړی پر ۱۸۴۶ ز کال وزیږیدې او پر ۱۹۵۹ ومړ، نوموړي ۱۱۳ کاله او یوه ورځ عمر درلود.

۳. "الایت ستونسن" د انګلستان اوسیدونکی و، نوموړی پر ۱۸۶۱ ز کال وزیږید او پر ۱۹۷۳ ز کال ومړ، نوموړي ۱۱۲ کاله او ۳۹ ورځې ژوند درلود.

۴. "الحاج محمد المد کرسی" د مراکش اوسیدونکی و، نوموړی په ۱۸۴۴ ز کال پیدا شو او پر ۱۹۵۷ ز کال ومړ، ټول ټال یې ۱۱۲ کاله ژوند وکړ.

۵. "هاین کیتراین" د ایرلینډ هستوګن و، نوموړی پر ۱۸۲۰ ز کال وزیږید او پر ۱۹۳۲ ز کال ومړ، نوموړي ۱۱۱ کاله او ۳۲۷ ورځې ژوند وکړ.

# لږ به له پاکستانیانو ځان خبر کړو!

د یوې څېړنې له مخې د پاکستان وګړي هر کال دیوسل او پنځوس ملیاردو کلدارو چای څښي، د ورځې د درې ملیاردو کلدارو متیایان، د لسو لکو کلدارو چاکلېټ او د اتو ملیاردو کلدارو قهوه مصرفوي.

همدا راز نوي پیدا شوي ماشومان د ورځې د ۱۶۰ لکو کلدارو شودې څښي، ددې څېړنې له مخې د پاکستان ځوانې پېغلې او نورې بازاري ښځې د ورځې د لسو لکو روپو په اندازه د ښکلا او سینګار شیان کاروي، د پاکستان د هرو ۷۴۷ کسانو لپاره یو یو ډاکټر رسېږي، په ټول هېواد کې ۳۵ لکه ځوانان وزګاره ګرځي، ددې هېواد پولیس د کال یو ملیارد او یوسلو شل ملیونه کلدارې رشوت اخلي او د ورځې یکې د ۸ ښځو عزت لوټل کیږي.

په پاکستان کې هر کال د ۲۵۰ ملیاردو روپیو دوا مصرفیږي، په هرو لسو ثانیو کې یو ماشوم زیږي او په هرو ۴۰ ثانیو کې یو ماشوم مري، هر کال ۳۰ لکه ښځې د حمل پر وخت مړېږي، په پاکستان کې د جنسي داروګانو کالنی کاروبار ۵۰ ملیونه کلدارې دی. د ایډز د ناروغانو شمېر یې ۲۰۰۰۰ او د سرطان د ناروغانو شمېر یې ۵ لکه دی.

په پاکستان کې هر کال د ۲۰ زرو کسانو پښتورګي خرابیږي او دمعیوبینو تعداد یې پنځو لکو ته رسي، همدا راز په پاکستان کې هر کال پر ۲ لکو تنو د فلج ناروغي راځي او هر کال ۶ لکه کسان په سالنډي ناروغی اخته کیږي.





# په یوه دقیقه کې

۱. د روغ سړي زړه په یوه دقیقه کې ۷۲ ځله درزیږي.

۲. موږ په یوه دقیقه کې ۱۵ ځله سا اخلو.

۳. سمندر په یوه دقیقه کې ۳۵۰۰۰ ټنه اوبه تر لاسه کوي.

۴. ځمکه په یوه دقیقه کې پر خپل چاپېر ۹۵۰ میله واټن طی کوي.

۵. په یوه دقیقه کې ۱۴۰۰ مکعب فټه باران وریږي.

۶. په یوه دقیقه کې ۶۰۰۰ رانه اسماني کاڼي را وریږي.

۷. په یوه دقیقه کې د رڼو کاڼو له امله پر ځمکه ۳۸ توپاني څرخوبي راځي.

۸. په یوه دقیقه کې ۴۳ زره او ۸۰۰ ګیلنه اوبه څښل کیږي.

۹. د سوي زړه په یوه دقیقه کې ۱۵۰ ځله درزیږي.

۱۰. د پیشو زړه په یوه دقیقه کې ۱۲۰ ځله درزیږي.

۱۱. د وزې زړه په یوه دقیقه کې ۱۴۰ ځله درزیږي.

۱۲. د آس زړه په یوه دقیقه کې ۷۰-۸۰ ځله درزیږي.

۱۳. د شاتو مچۍ په یوه دقیقه کې ۳۰۳ ځله خپل وزرونه رپوي او ۴۰۹ فټه لاره وهي.

۱۴. مچ په یوه دقیقه کې ۳۰۲ ځله وزرونه خوځوي.

۱۵. منج په یوه دقیقه کې ۱۵۰ متره واټن وهي.

۱۶. "کړړی" یا چرچرک په یوه دقیقه کې ۷۴۰۰ ځله اواز کوي.

۱۷. په یوه دقیقه کې په نړۍ کې اویا ملیونه پیالې قهوه څښل کیږي.

۱۸. په نړۍ کې د یوې دقیقې په ترخ کې یو من تمباکو کارول کیږي.

# د مشهورو خلکو کسبونه

۱. نور محمد "تره کی" د بزګر زوی و.

۲. نادر شاه د یوه غریب سړي زوی و.

۳. مشهور پانګوال هنري فورډ یومزدور و.

۴. د بنګال والي "لارډکالایتویك" کلینر و.

۵. "جوزفین" د نسوار پلوونکي زوی و.

۶. "ابراهیم لنکن" د یوه بزګر زوی و.

۷. د امریکا ولس مشر "ایزن هاور" اخبار پلورونکی و.

۸. کرستهف کولمب دیوه جولا زوی و.

۹. سقراط دیوه خټګر زوی و.

۱۰. ایبك قطب الدین غلام و.

۱۱. جرمنی دیکتاتور هټلر د موچي زوی و.

۱۲. ریګن د سینما لوبغاړی و.

۱۳. کلینټن سندر غاړی و.

۱۴. هټلر پخپله لوحه لیکوال و.

۱۵. انشټین کاتب و.

۱۶. مشهور ساینسپوه "تامس ایډیسن" ورځپاڼې پلورلې.

۱۷. د فرانسې مشهور ولس مشر "نپولین بوناپرټ" ساده پوځي و.

۱۸. مشهور واکمن حجاج بن یوسف عادي ښوونکی و.

۱۹. د اور ګاډي جوړوونکی "چارج سټیفن" مزدور و.

۲۰. مشهور ساینسپوه نیوټن د یوه بیوزله بزګر زوی و.

۲۱. لوی حکیم "لقمان" په کوچنیتوب کې څراغونه جوړول.

۲۲. د امریکا پخوانی ولسمشر" هندری ټرومیسن" ورځپاڼی پلورلې.

۲۳. د موټرو دستر کارخي مشر "هنري فورډ" چوپړاسي و.

۲۴. "مسولینی" د یوه پښبګر لور وه.

# ۱۲ میاشتې د ۱۲ بتانو نومونه

۱. (جنوري)، د دیوتا یا "خدای" د پیل میاشت.
۲. (فروري)، د فیسروا دیوتا میاشت.
۳. (مارچ)د مارتس دیوتا میاشت.
۴. (اپریل)، د ارویل دیوتا میاشت.
۵. (می )، د مایا دیوتا میاشت.
۶. (جون) ، د جونو دیوتا میاشت.
۷. (جولای)، د جولیس دیوتا میاشت.
۸. (اګست)، د اګتس سیزر دیوتا میاشت.
۹. (ستمبر)، دیونانیانو د مذهبی دیوتا "کتاب" میاشت.
۱۰. (اکتوبر)، د اګتهو دیوتا میاشت.
۱۱. (نومبر)، د [illegible] نایم ډیم دیوتا میاشت.
۱۲. (ډسمبر)، ددیوی ډیم دیوتا میاشت.

**یادونه :-**

هندوان دیوتا د خدای لپاره کار وي، پورتنی نومونه په لاتیني ژبه دي چې انګلیسي ته په لږه بدلون ورننوتي اوهریو یې ځانته معنا او ځانګړنې لري.

# د ځينو هيوادونو ملي لوبې

* د افغانستان ملي لوبه " وزلوبه " ده.
* د پاکستان ملي لوبه " هاکي" ده.
* د چين ملي لوبه " ګوډۍ" جګول دي.
* د انګلستان ملي لوبه " کرکټ" لوبه ده.
* د هالينډ ملي لوبه " اسکتيك" لوبه ده.
* د امريکا ملي لوبه" باسکيټ بال" لوبه ده.
* د جاپان ملي لوبه د " جوډو کاراټې" لوبه ده.
* د برازيل ملي لوبه " فټبال " لوبه ده.
* د ايران ملي لوبه د "ولي بال" لوبه ده.
* د مغلستان ملي لوبه د "پولو" لوبه ده.
* د کاناډا ملي لوبه د" ايس هاکي" لوبه ده.
* د روسيې ملي لوبه د "جمناستيك " لوبه ده.
* د فرانسې ملي لوبه د " ټيبل ټينس" لوبه ده.








۱. د تایلنډ پخواني پاچا "چولان" ۳۰۰۰ میرمنې در لودې د نوموړي ټول ۱۳۳ زامن او ۲۳۶ لوڼې وې.

۲. د شاتو مچۍ د شاتو د یوه څاڅکي د څلورمې برخې د جوړولو لپاره سل میله لاره وهي او پر سل ګلانو کېنیني.

۳. ښاغلي "تام و یدر" چې د برتانیا د "پارکشایر" ښار اوسیدونکی و تر ټولو اوږده پوزه درلوده، د نوموړي د پوزې اوږدوالی اووه نیم انچو ته رسېده.

۴. په جاپان کې داسې چرګان موندل کیږي چې لکۍ یې له اتو څخه تر ۲۵ فټو پورې اوږدې وي.

۵. "جوزف ایداملي" د فرانسې د "مارسیلز" ښار هستوګن دی
او دویني اتل بلل کیږي. نوموړی له ۱۹۳۱ کال نه تر ۱۹۶۸
کال پورې ۷۴ ګیلنه وینه ورکړې ده.

۶. د هند یو اوسېدونکی "هری داس" دومره اوږده ژبه لري چې
خپله تنده پرې څټلی شي.

۷. د انګلستان لومړنی پاچا "جورج". انګلیسي نه وه زده.

۸. د هند د بیل دسیمې نارینه که ماشومان ونه زیږوي، ښځینه
جامې اغوندي.

۹. د نړۍ تر ټولو ستره هټۍ په نیو یارک کې ده، چې څلور
پوړه لري او ۱۱ زره کسه پکې کار کوي، په دې هټۍ کې
څلورلکه ډوله شیان دي او دورځې یو نیم لك مشتریان
(پېرونکي) ورته راځي.

۱۰. په ز۱۹۱۸ کال د اندونیزیا په یوه ښار کې اعلان وشو هر
څوك كه غواړي ي واده وكړي، ۲۵ مړه یا ژوندي موږکان دې
راوړي او کنه اجازه نه ورکول کیږي.

۱۱. د مراکش یوه پاچا "اسماعیل (۱۶۷۶-۱۷۲۷) ۸۸۸ زامن
او ۵۴۰ تنه سپاهیان لرل چې ټول یې خپل زامن و.

۱۲. "لینا هیدنیا" تر ټولو کوچنی مور ده چې په ۶ کلنۍ کې یې
زوی راوړ.

۱۳. له یوه پونډ صابون څخه تقریباً یونیم ملیون پوکانۍ جوړیږي.

۱۴. د یوه پونډ وربښم لپاره ۲۵ زره چنجیان له منځه ځي.

۱۵. جورج واشنګټن د امریکا لومړنی ولس مشر هیڅکله هم په لاس ستړي مه شي نه دي ورکړي.

۱۶. "کامك اسکل" (۱۸۲۳-۱۸۶۳) د نړۍ غښتلی سړی بلل کیږي، نوموړي یو ځل ۲۲۰۰ پونډیزه الوتکه پورته کړه او ۱۰۰۰ ډالره انعام یې تر لاسه کړ.

۱۷. "کرستین اپردین" ۳۰ کاله د پولینډ ملکه وه جالبه دا چې په دې ټول وخت کې یې یو ځل هم پولینډ ته سر ورښکاره نه کړ.

۱۸. چین په ۱۹۸۷ کال دوه ملیونه بایسکلونه جوړ و.

۱۹. جاپان په ۱۹۸۸ کال ۱۵ ملیونه تلویزیونونه جوړ و

۲۰. د نړۍ تر ټولو زوړ پاچا "۷۹" کلن " اردل دهم" و.

۲۱. د امریکا مشهوره ورځپاڼه " نیویارك ټایمز" په ۱۹۶۰ کال په ۶۷۸۰ مخونو کې چاپ شوه.

۲۲. په ملایا کې یوه ښځه اوسي چې د خولې پرځای په پوزه تووله وهي.

۲۳. په ترکستان کې یو سړی دی چې د خپلې تندې پوسیله اورلګیت یا ګوګړ بلوي.



۲۴. "پنګوین" د سمندر امپراتور نومیږي او ۲ متره اوږدوالی لري.

۲۵. د "سمندر خدای" ابي نهنګ دی چې ۲۲ متره اوږد دی.

۲۶. "لمر کب" ۳ ملیونه هګۍ اچوي.

۲۷. د چین دیوال ۳۰۰۰ متره اوږدوالی، ۱۵۰ متره لوړ والي او ۹ متره سور لري.

۲۸. د موز د کیلی دپاڼو اوږدوالي ۱۰ فټه دی

۲۹. د نړۍ د دریمې برخې خوراک وریژې دي.

۳۰. سرکوزی او اوبن لامبو نشي وهلی.





* په "ویسټ انډیز" کې یو ډول ونې پیدا کیږي چې کیک ته ورته دي، کله چې ددغو ونو پاڼې پوره وده وکړي، ځمکې ته راښکته کیږي او د ویسټ انډیز خلک یې په ډېر خوند خوري.

* د نړۍ تر ټولو اوږد لاریون په ۱۹۳۴ کال په چین کې وشو، دغه لاریون ۲۲۸ ورځې روان و او ۶۰۰۰۰ تنو نژدې ۶۶۵۰ کیلو متره لار طی کړه، په دې لاریون کې ۲۲۰۰۰ تنه مړه شول.

* د امریکا یو هستوګن "رابرت پنپن" تر درې ورځو پرته له زړه ژوندۍ و اوسېده.

* په ارمینیا کې یو تن دومره قوي ؤ چې د غاښونو پوسیله یې د اور ګاډي دوه کوټې تر ۳۵ فټه واټن وڅکولې.

* د نړۍ مشهوره څلور لارې د امریکا په کلیفورنیا کې ده، چې په منځني ډول هره شپه ورځ پرې ۲۲۵۰۰ موټر تیریږي، پر دې څلور لارې ۱۰۲ ملیونه ډالره لګښت شوی دی.

# د افغانستان د ۳۰۰ کالو پاچاهان او واکمن

- میرویس نیکه (رح) له ۱۷۰۷ څخه تر ۱۷۱۵.
- عبدالعزیز خان ۱۷۱۶.
- شاه محمود خان تر ۱۷۲۴.
- شاه اشرف تر ۱۷۲۹.
- شاه حسین تر ۱۷۴۷.
- لوی احمد شاه بابا (رح) تر ۱۷۷۲.
- سلیمان، یوه ورځ.
- تیمور شاه تر ۱۷۹۲.
- شاه زمان تر ۱۸۰۱.
- شاه محمود تر ۱۸۰۳.
- شاه شجاع تر ۱۸۱۱.
- "بارکزي" تر ۱۸۲۹.
- شاه محمود، امیر دوست محمد خان او شاه شجاع د دوهم ځل لپاره.
- امیر شیر علي خان
- امیر محمد افضل خان
- امیر محمد اعظم خان.





- شیر علي خان.
- امیر محمد یعقوب خان.
- امیرعبدالرحمن خان.
- امیر حبیب الله خان.
- غازی امان الله خان (رح).
- حبیب الله" بچه سقاو".
- عنایت الله خان.
- محمد نادر شاه.
- محمد ظاهر شاه (۱۹۳۳- ۱۹۷۳) .
- سردار محمد داوود له (۱۹۷۳ تر ۱۹۷۸).
- نور محمد "تره کی" له (۱۹۷۸ اپریل - ۱۹۷۹سپتمبر)
- حفیظ الله " امین" اپریل (۱۹۷۹- دسمبر ۱۹۷۹) .
- ببرك " کارمل".
- ډاکټر نجیب الله.
- صبغت الله مجددی.
- برهان الدین ربانی.
- ملا محمد عمر (د ۱۹۹۶ له اکتوبر څخه) .
- حامد کرزی (۲۰۰۱) .

# د افغانستان د تاریخ له پاڼو

۱. له اسلام نه وړاندې افغانستان ۱۷ حکومتونه درلودل، چې ټولو ځانونوته شاهان ویل.

۲. سلطان محمود غزنوي د خپلو سترو چارواکو مالونه ضبطول.

۳. په ۱۷۰۹ کال پښتون، تاجك، ازبك او بلوخ ټول په یوه کتار د یرغلګرو په وړاندې ودرېدل.

۴. د پښتنو، تاجکو، ازبکو او ...... تر منځ د پخلاینې پخاطر تر ټولو زیات کار ملامشك عالم، عبدالقادر خان تاجك او محمد ګل خان مومند وکړ.

۵. په ۱۳۵۷ کال د رمضان په ۱۷ لومړی اروپایي امپراتور په افغانستان او هند کې ماته وخوړه.

۶. میوند وال خپله ټوله شتمني ملي اعلان کړه او خپلې شخصي ودانۍ یې معارف وزارت ته ورکړې.

۷. نوراحمد اعتمادي تر ډېره خوب کاوه، او د ۱۱ بجو په شاوخوا کې به دندې ته حاضرېده.

۸. ډاکټر محمد یوسف په ۱۹۶۵ کال د اکتوبر پر ۲۵مه نېټه صدر اعظم شو.

۹. ډاکټر محمد یوسف د ۱۹۶۵ کال ذمې میاشتې په ۲۹مه استعفا ورکړه.

۱۰. د ۱۹۶۵ کال د نومبر په دوهمه میوندوال صدر اعظم شو.

۱۱. د ۱۹۶۷ کال د نومبر پر ۱۴مه نور احمداعتماد صدر اعظم شو.



۱۲. په ۱۹۷۲ ز ییخ کال منهاج الدین ګڅیخ په ۴۰ ستون کې شهید کړای شو.

۱۳. په ۱۹۷۹ کال دسپتمبر په ۱۶مه نور محمد تره کی ووژل شو.

۱۴. د ۱۳۷۱ کال د غویي پر شپږمه مجاهدینو کابل ونیو.

۱۵. د جوزا پر لومړۍ نیټه مجددی مزار ته لاړ او دوستم یې په "ستر جنرالۍ" او "لوی مجاهد" وویاړه.

۱۶. د ۱۳۷۱ل کال د لیندی پر ۱۳مه بابري جومات شهید کړای شو.

۱۷. د مرغومي پر یولسمه پر رباني د حزب، جنبش، وحدت او مجددي ګډه کودتا

۱۸. د سلواغې په ۲۵مه نېټه جنرال مؤمن ووژل شو.

۱۹. د ۱۳۷۲ کال د میزان په دریمه طالبان را پیدا شول.

۲۰. د ۱۳۷۶ کال د وري په ۵مه طالبانو ملګرو ملتوته حامد کرزی د خپل استازي په توګه ورو پیژانده.

۲۱. د کب په ۲۲مه طالبانو عبدالعلي مزاری وواژه.

۲۲. د ۲۰۰۱ کال د سپتمبر په ۱۰مه قوماندان احمد شاه مسعود ووژل شو

۲۳. د ۲۰۰۱ کال د اکتوبر په ۷ نیټه امریکا پر افغانستان برید پیل کړ.

۲۴ د اکتوبر په ۱۳مه نېټه له طالبانو څخه کابل ونیول شو.

۲۵ د دسمبر په ۲۲مه نیټه کرزي واك تر لاسه کړ.

# افغانستان ته د لومړي ځل لپاره

➢ "ټیلیفون" افغانستان ته د لومړي ځل لپاره په ۱۸۹۹ ز کال د امیر حبیب الله خان په پېر کې راغی.

➢ "سینما" افغانستان ته په ۱۹۰۴ کال د امیر حبیب الله خان پر وخت د هند لخوا ډالۍ شوه.

➢ "راډیو" افغانستان ته د ړومبي ځل لپاره په ۱۳۰۵ کال راغله.

➢ "مطبعه" دلومړي ځل لپاره په ۱۸۷۰ ز کال افغانستان ته راوړل شوه

➢ "تلویزیون" د لومړي ځل لپاره په افغانستان کې په ۱۳۵۶ کال پر خپرونو پیل وکړ.

## د مئ په میاشت کې

* (د مئ ۳مه- ۱۶۱۳) : "خوشال خان ختک (رح)" وزیږېد.
* (د مئ ۵ - ۱۸۴۶) : نوبل ګټونکی ادیب "هیرکی سنکیوز" وزیږېد.
* (د مئ ۳مه - ۱۹۱۲) : "ډیپټی نظیر احمد" وفات شو.
* (د مئ ۶مه - ۱۹۴۹ز) : "موریس میترلنګ" وفات شو.
* (د مئ ۷مه - ۱۸۶۱) : ستر شاعر "رابندرنات ټیګور" وزیږېد.
* (د مئ ۷مه - ۱۸۲۷) : نوبل ګټونکی ادیب "سلاوریمونټ" وزیږېد.
* (د مئ ۱۱مه - ۱۹۱۲) : اردو ژبې کیسه لیکوال "سعادت حسن منټو" وزیږېد.



# د افغانستان لومړني اخبارونه

- د افغانستان لومړنی اخبار "شمس النهار کابل" نومېده چې په ۱۲۹۰ل کال کې خپور شو.
- "افغان" لومړنی اخبار دی چې د ورځپاڼې په بڼه په ۱۲۹۹ل کال په کابل کې خپور شو.
- "ارشاد النسوان" چې د ښځو لپاره ځانګړی اخبار و، په ۱۳۰۰ لمریز کال په کابل کې خپور شو.
- د مشرقي لومړنی اخبار د "اتحاد مشرقي" په نوم و، چې په ۱۲۹۷ ل کال کې خپور شو.
- د هرات لومړنی اخبار "اتفاق اسلام" دی، چې په ۱۳۰۲ل کال خپور شو
- "طلوع افغان" د لومړي ځل لپاره په ۱۳۰۰ل کال په کندهار کې خپور شو.
- د بلخ لومړنی اخبار "بیدار" و چې په ۱۳۰۰هـ.ل کال کې خپور شو.




Scanned by CamScanner

- "انیس" د افغانستان لومړنی ملي اخبار دی چې په ۱۳۰۶ل کال کې چاپ شو.
- "ابلاغ" هغه جریده ده چې په ۱۳۰۰هـ.ل کال کې په دیوالي بڼه خپرېدله.
- په پکتیا کې "اصلاح" او په پروان کې "ستاره افغان" له استقلال څخه وروسته خپاره شول.
- دافغانستان مرکزي اخبار د امیر شیر علي خان پر وخت ". شمس النهار کابل" د امیر حبیب الله پر وخت "سراج الاخبار افغانیه" د غازي امان الله خان(رح) پروخت "امان افغان" د حبیب الله کلکاني پر وخت "حبیب الاسلام" د ظاهر شاه پر وخت "اصلاح" د سردار محمد داودخان پر وخت "جمهوریت" او د کمونستانو پر وخت "دثور انقلاب" نومېده، چې په دې توګه هر یوه پاچا د بیرغونو په څېر اخبارونه هم بدل کړي و.



* د میوند غزا په ۱۸۸۰ز کال د کندهار په میوندولسوالۍ کې پیښه شوه.
* انګریز پوځ پیښین ته د نومبر په ۲۱مه د جنرال "ډونالډ ستوراټ" په مشرۍ داخل شو.
* انګریزانو په ۱۸۸۰ زکال د اپریل په لومړۍ نیټه اعلان وکړ چې کندهار له افغانستانه بېل شو او شیرعلي د مهر دل خان زوی یې ګوډاګی والي وټاکه.
* په ۱۸۸۰ز کال د جون په میاشت کې علماوو غازي ایوب خان په ګډه فتوا خپل امیر وټاکه او د ده په نوم سکه ووهل شوه او خطبه ولوستل شوه.
* د میوند جګړه د جولای پر ۲۷مه نیټه ونښته.
* د میوند په جګړه کې ۱۳۰۰۰ انګریز پوځیان ووژل شول، او یو برتانوی جګړن "مك لاین" ژوندی ونیول شو.
* په میوند کې د انګریزانو د "۶۶" نمبر کنډك ټول سرتیري ووژل شول، خو یو تن یې په تیښته بریالی شو.
* په میوند جګړه کې د افغاني شهیدانو شمېر ۷۰۰ تنه و.
* په ۱۸۸۰ کال انګریزانو پر غازي ایوب خان (رح) برید وکړ، چې له مقاومت سره سره ایوب خان شاتګ ته اړشو، د امیر عبدالرحمن خان په خیانت ایوب خان کندهار او هرات له لاسه ورکړل او ایران ته لاړ.



* ایرانیانو" ایوب خان " په ۱۸۸۷ ز کال انګریز کونسل ته وسپاره، چې بیا په راولپنډۍ کې د تل لپاره پاتې شو، نوموړی غازي په ۱۹۱۴ کال وفات او په پېښور کې دوصیت سره سم خاورو ته وسپارل شو.
* په دوهمه جګړه کې ۱۴۰ زره انګریزي پوځیانو برخه واخسته ، ۳۰۰۰ کسان یې ووژل شول او ۴۰ ملیونه پونډه یې زیان ولید.
* میوند جګړې افغانستان له تجزیې وژغوره او د کندهار ۸۸۸ ورځنی بیلتون یې پای ته ورساوه.
* د میوند جګړې ښځینه اتله " ملالۍ (رح) " ده ،چې په خپلو دې ټپو یې د میوند جګړه په بري بدله کړه:

که په میوند کې شهید نه شوې
خدایږ ولالیه بې ننګي ته دې ساتینه.
خال به د یار له وینو کښیږدم
چې شینکي باغ کې ګل ګلاب وشرموینه.

* غازی ایوب خان ، جنرال تاج محمدخان، ملایحیی اخندزاده ترین، میر بچه خان، امیر محمدخان او ملاله د میوندجګړې له مشهوروسرتېرو، او ملي اتلانو څخه ګڼل کیږي.





# نړیوال ریکارډونه

ټوکې!

* د پیرو مشهور ټوکمار "فلیپ" دپر تګال په الفاخوړنځي کې ۷۲ ساعته پرلپسې ټوکې وکړې او خلك یې وخندول، چې یو نړیوال ریکارډ یې ټینګ کړ.

پرنجی!

* د امریکا د میامی سیمې یوې ۱۴ کلنې جلۍ "جون ګلاك" ۵۵ ورځې له ځنډپر ته پر نجی وکړ، دا جلۍ په ۱۹۶۶ کال ۵۵ – ورځې وپرنجېده.

غټ بوټ!

* د نړۍ تر ټولو غټ بوټ په برستون ښار ګوټې کې جوړ شوی، دا بوټ چې د څلورو غواګانو له څرمنو څخه جوړ شوي څلورو رنګمالانو ته اړتیا لري. او څلور رنګمالان کولای شي له سهاره یې تر ماښامه رنګ کړي.

ستره ناغه!

* دنړۍ تر ټولو ستره ناغه یوه ماشوم ته ورکړل شوه، ماشوم په ۱۶۸۵ کال په فرانسه کې دیوې ترافیکي پیښې په ترځ کې یو غړی له لاسه ورکړی و، چې د جنوري په میاشت کې یې – ۲۹۴۶۰۰۰ فرانکه د ناغې په توګه واخستل او د ناغې ریکارډ یې لا تر اوسه پاتې دی.

اوږد سفر!

* د کاناډا د یوه پوهنتون محصلینو د لمر دوړانګو پوسیله پر تلونکي ګاډي د ۷۰۰۰ کیلو متره واټن په وهلو سره یو نړیوال

ریکارډ ټینګ کړ، نوموړو په یوه ګینټه کې ۸۰ کیلو متره او په ۹ ورځو کې ۷۰۰۰ کیلو متره لاره وهله.

ستړی مه شي!

* د امریکا پخوانی ولسمشر "تیودورروز ولټ" په ۱۹۰۷ز کال د نوي زیږیځ کال د مبارکي په ورځ له ۱۸۵۱۳ تنو سره ستړی مه شي وکړل، چې دغه ریکارډ تر اوسه چانه دی مات کړی.

ښځه د خبرو ماشین!

* د یوه خبر له مخې ښځه د ورځې ۱۲۶۲۰ لفظه، مبلغ د ورځې ۳۴۳۲، پولیس د ورځې ۱۰۶۶ او تجار د ورځې ۱۱۵۸۰ لفظه، په خوله راوړي، چې ښځو په دې توګه د ډېرې غږېدا ریکارډ ټینګ کړی دی.

زوړ اس!

* د هغه اس د عمر اوږدوالی چې په ښارویو کې یې د اوږده ژوند ریکارډ مات کړی ۶۱ کاله دی.

چاغ اس!

* تر ټولو مزی او چاغ اس د "مجار" د ډلې آس دی چې وزن یې ۱۳۵۸۵ کیلو ګرامه و.

زړه پیشو!

* د انګلستان دیوی ښځې "اتنی جورجبور" د پیشو عمر ۳۵ کاله و چې په ۱۹۵۷ کال مړه شوه او یو نړیوال ریکارډ یې ټینګ کړ.

د پوکانیو ریکارډ!

* د نړۍ د زیاتو پوکانۍ الوزولو ریکارډ په ۱۹۸۲ زیږیځ کال د جنوری د میاشتې په لسمه نیټه د امریکا د ویګاس په ښار کې دیوه ـــــ خوړنځي (هوټل) د پرانستې پر مهال ټینګ کړای شو، ددې ریکارډ د ټینګښت لپاره ۲۰۸۴۴۷ پوکانۍ (ډووني) والوزول شوې.

## عجیب توتي!

د ایران دتهران په ښار کې.له یوه سړي سره داسې توتي دی چې په فارسي او عربي ژبو سر بېره د قران کریم تلاوت هم کوي ، دا توتي چې د لاتیني امریکا د "کسیکو" له نسله دی د ټولو امامانو نومونه هم اخلي، د توتي څښتن وویل هر سهار چې زه.له خوبه پاڅم د توتي پر ککړیمه " قفس " سپین ټوکر غوړوم ، بیا نو چې زه څه وایم توتي هم را سره لګیا وي.

## دشودو مقبره!

په قازقستان کې د الاشاخان لرغوني مقبره د شودو په خښتو جوړه شوې ده، دا مقبره ۵۰۰ کاله لرغونتوب لري او د جوړېدا لپاره یې د ۵۰۰ اسپو له شودو څخه استفاده شوې ده.

## تاریخي هګۍ!

له نن څخه نژدې ۴۴ کاله وړاندې د لومړي ځل لپاره په مصر کې یوه داسې هګۍ ننداري ته کېښودل شوه چې د عثماني خلافت ټول تاریخ پرې کښل شوی و.

## عجیبه ودانی!

په ایټالیا کې یوه ودانۍ جوړه شوې چې که څوک پکې غږ وکړي. یوولس ځله یې غږ بدرګه کیږي.

## دولفین کب!

دولفین کب په یوه ګېنټه کې ۴۰ کیلو متره مزل وهي، د انسانانو په څیر خاندي، د ښځو په څېر چیغې وهلی شي او ښکار پر مهال غوریږي، ساینسپوهان وایي که دولفین لاس اوپښې درلودلی او غږیدلی شواي نو د ذهانت له مخې به د نړۍ واکمن وای.

## د ښیښې مار!!

په شمالي امریکا کې د ښیښو په ډول ماران او سي که انسان لاس وروړي دښیښې غوندې سره توییږي.

## لوی کدو!!

په ۱۸۲۶ز کال په امریکا کې د "جان هنس" بزګر په ځمکه کې یو کدو راشین شوي و. چې اوږدوالی یې

لس فټه او لس انچه او سوريږي.له ۶ څخه تر ۷ فټو رسېده. دغه کدو.له جان هنس نه هم لوړو.

## نيم کيلو مالګه!

په لرغوني چين کې به که چاغوښتل څانوژنه وکړي مخکې.له مخکې به يې نيم کيلو مالګه خوړله.

## ۱۵ دقيقې پاچاهي!

د فرانسې څلورم لويي يوازي د ۱۵ دقيقو لپاره پاچاهي وکړه، نوموړی د ۱۸۸۲ کال د اګست په دوهمه نيټه پاچا شو، خو تر ۱۵ دقيقو وروسته بېرته لرې کړای شو.

## د درناوي لاړې:

د امازون سيند د غاړې اوسيدونکي د درناوي او احترام پخاطر يو بل ته لاړې توکوي، وايي چا چې ډېرې لاړې سره توکړې هغوی د احترام بيلګې ګرځي، ددې څای وګړي د خپلو پښو او لاسونو نوکان د يو بل پر سرونو مښي اوګروي يې.

## په هوا کې خوب.

سيسطرس يو ډول مرغه دی چې په هوا کې خوب کوي دا مرغه کولی شي ۶ ورځې په پرلپسې ډول پرته.له وزر خوځولو په هوا کې په ځوړند حالت واوسي.

د مقناطیسو دروازه:

۲۳۰۷ کاله وړاندې د چین شاهي ماڼۍ د مقناطیسو یو عجیب ور (دروازه) درلوده، نوموړی ورچې د جوړښت ټول توکي یې د مقناطیسو سره ګډ و دغلو او تر هګرو لپاره دسر درد و. کله به چې وسله وال غله یا په چړو سمبال څوک له وره څخه ننوتل دوره لخوا به ونیول شول او پلان به یې شنډ شو.

قوي موږکان:

د امریکا په متحده ایالاتو کې یو ډول موږکان اوسي چې ډیر قوي بدن لري، دا موږکان کولای شي د ۸۰ کیلوګرامو بار څخه ځان وباسي په دې مانا که د غنمو یوه بوجۍ پرې کیږدې ، ځان به ترې را وباسي.

۹ انچه ژبه!

څه موده وړاندې په امریکا کې د " هیرک ستړن" په نوم یوه سړي خپله میرمن له دې امله طلاقه کړه ،چې اوږده ژبه یې درلوده، د "میدي" ژبه تر اتو انچو پورې رسیده ، خو جالبه لا دا چې د "میدي" تر طلاق وروسته پخپله د " هیرک ستړون" ژبه هم اوږده شوه ، او ۹ انچو ته ورسیده.

بیزوهم سګرټ څکوي!!

په کلیفورنیا کې یوه سړي یوه بیزو ساتلې ده ،چې په پرله پسې ډول سګرټ څکوي. پر څوکیو کیني او په



عکستون "عکس خانه" کې تصویرونه اخلي او قیچې کوي یې. دغه بېزو چې "کوکو" نومیږي کله کله خبرې هم کوي، کتابونه لولي او د ځایي ژبې ۳۹۸ لفظونه یې یاد کړي دي، دا بېزو یوه ښه بوټ ګنډونکې "موچي" هم ده.

## وچه او زرغونه مېوه!

د نړۍ په ځینو سیمو کې یو ډول مېوه موندل کیږي چې د "بق" په نوم یادیږي. که چیرې له ونې څخه راوغورځي سملاسي وچیږي، خو که کوم مرغه یې ورواخلي او والوزي، بیا یې د منو په کومه ونه کې وخوري او داني یې لاندې واچوي، بیرته راشنه کیږي او وده کوي.

## انځور ګره بیزو!

د استرالیا په .Perth ژوبڼ کې یوه بیزو اوسي چې ډېره ښکلې انځور ګري کوي، دغه بیزو چې ۲۶ کاله عمر لري یو جوړ شوی تصویر یې د ۱۹۹۶ز کال د اکتوبر په ۱۲مه نیټه په ډېره ګرانه بیه وپلورل شو.

## سندر غاړي کبان!

په سریلانکا کې دیوه سمندر، له تله ښځینه اوازونه پورته کیږي، ځایی خلک وایې چې د سمندر په تل کې پیریان اوسي خو اوس ساینسپوهانو دا جوته کړې چې پیریان نه دي، بلکې دا د کبانو اوازونه دي، دهغه

ځای مسلمانان پردې باور دي، چې دا کبان د خدای(ج) ثنا وايي

## د هډوکو بوټان !

د "منګول" قبیلې په غرو کې یو ځانګړی دود دی ، دوی د دودیز ومیلو په ترځ کې یو ډول عجیب بوټان په پښو کوي، هغه بوټان چې دوی یې په پښو کوي په جوړښت کې یې د انسان.له هډوکو او غابښونو څخه کار اخیستل کیږي.

## په خوب کې ځواب!

یو امریکایی چارواکی ، چې څه موده یې په وزارت کې هم دنده تر سره کوله، کله یې چې په "ټرینټو" پوهنتون کې تحصیل کاوه، یو ځل یې د الجبر پر یوه افاده ۳۶ ساعته پرلپسې کار وکړ خو حل یې نشوای کړه، ځنګه چې ویده شو د خوب پر وخت یې په پرلپسې ډول ۵۰ پاڼې توري کړې، کله چې.له خوبه پاڅېد ، مسئله حل وه، عجیبه لا دا چې ټولې پاڼې دده په لاس توري شوې وې.

## په یوه روغ بوډا توب:

په ۱۸۷۰ کال د فرانسې او جرمنی جګړه په دې پریکړې تم شوه چې فرانسه به جرمني ته د جګړې ټول زیان ورکوي، د فرانسې د بانك رئیس.له ډېرې سختی



دومره وویږېد چې له ماسپښینه یې تر ماښامه د سر تول وېښتان سپین شول، دغه سړی "ریلفیس یورت شیلډ" نومېده او د زیان اندازه سل ملیارده ډالره وه.

## وژونکي پاڼي:

د افریقا په سویلي سوا حلو کې یو ډول بوټي مونډل کېږي، که چیرې مچ ، یا میاسی او یا نور حشرات یې پرپاڼو کښیني، پاڼې له دواړو خواو پرې راټولېږي او حشره وژني.

## ژبې په پړو تړي!

د "تبت" په یوه سیمه کې یوه قبیله اوسي، چې د میلمنو په وړاندې خپلې ژبې په پړو تړي، دا خلک ځکه دا کار کوي چې له شیمات "غیبت" څخه ځانونه وژغوري.

## پزه کش کول یودود:

د "بایوا" قبیلې خلک، چې کله یو دبله مخامخېږي خپلې پزې سره موښي، نومو ړي خلک دا کار د تعظیم او درناوي په توګه کوي، کله کله چې دوی خپلې پوزې په غاښونو سره کش کوي وینې هم ترې ځي.

## درناوو ونه:

د اندونیزیا د "جاوا" په ځنګلونو کې یو ډول ونې دي چې دتیارې پر وخت رڼا کوي، دغه ونې تقریبا اووه فټه لوړوالی لري، او کولای شي انسان یې تر لاندې مطالعه وکړي.

## خندوونکي کبان!

په اتلانتیک سمندرګي کې یو ډول کبان موندل کیږي چې ډېر هوښیار دي او په لومه کې نه کښېوزي خو که په لومه کې کښېوزي او پوخ شي، د خوراك پر مهال پر انسان سخته خندا راولی چې دا خندا تقریبا ۱۲ ساعته دوام کوي.

## شتمنه پیشو!!

په بریتانیا کې د "ډاټ کام" په نوم پیشولك پتې شوه، د برتانوي ورځپاڼو په وینا، د انټرنیټ د یوې کمپنۍ مشرې "راکیل هاك" چې کله د خپلې کمپنۍ کار پیل کړ.له ځان سره یې یوه پیشو هم وساتله، هرڅومره چې پیشو غټېدله کمپنۍ هم هومره پر مختګ کاوه، اوس اوس چې د کمپنۍ پانګه تر لس ملیاردو پونډو رسېدلې، دکمپنۍ څښتنې د نورو کاریګرو په وړاندیز پیشو هم د کمپنۍ "کاریګره" وګڼله او ۱۰ لکه پونډه یې د نومورې په نوم ولیکل.

*****

## له سپي سره واده!!!

د ۲۰۰۰ز کال په جولای کې یوه بنګالي د بنګال په لویدیز کې خپله څلور کلنه لور سپي ته واده کړه، "انجو" ورځپانه لیکي چې دې نجلۍ څه موده وړاندې خپل یو لاس .له لاسه ورکړ، بل ځل یې مټ د لاسه ورکړ، اته میاشتې لاته وې تیرې شوې چې خپله شونډه یې پرې کړه، تر دې پېښې شپږ میاشتې وروسته نوموړې په اوبو کې ډوبه شوه، د نوموړې پلار "کرما کمار" ته د کلي کوم ساده ویلی و، چې لور دې بد نظر وهلې او پر سر یې پیریان ناست دي که .له سپي سره یې واده وکړې نو وبه ژغورل شي،ده هم همداسې وکړل اوخپله لورېې پرسپي ور وسپارله .

## ۳۲ کاله بې هوښي:

د بې هوښۍ تر ټولو اوږده پیښه په سویډن کې را منځته شوې ، "کاروکین" چې په ۱۸۲۶ کال زیږیدلی و د ۱۸۵۷ کال د سپټمبر په دوهمه نېټه بې هوښ (بي سده) شو اود ۱۹۰۸ کال د اپریل په ۱۳مه نیټه په هوښ راغلی، نوموړی ۳۲ کاله او ۹۹ ورځې په بې‌هوشۍ کې پروت و.

## د ونو چونګښې:

په ونو کې اوسېدونکې چونګښې زیاتره د بحرالکاهل په سمندري غارو کې اوسیږي، دا

چونګبنې له یوه څخه تر پنځو سانتي مترو غځوالی لري او په بوټو، ونو او ګلانو کې ژوند کوي.

## ځراغ لرونکي حشرات:

د جنوبي امریکا په یوه غرني سیمه کې کلیوال

• وګړي له یو ډول حشرو څخه د برېښنا او رڼا په توګه کار اخلي، ویل کیږي ددغو سیمو هره کورنۍ له ۵۰ څخه تر سلو پورې حشرې لري او خپلې کوټې یې پرې روښانه کړې دي، ددغو حشرو په رڼا کې سړی مطالعه هم کولای شي.

## د غاښونو ایستل:

په روسیه کې د لوی پیټر په نوم یو پاچا تېر شوی. د نوموړي د پاچاهۍ دوره له ۱۶۷۲ څخه تر ۱۷۲۵ زیږیز کال پورې وه، پاچا ته ډېر زر غوسه ورتله او کله چې به غوسه شو د خپلو مخالفینو غاښونه به یې ایستل، هغه کسان چې پیټر یې پخپله غاښونه را ایستلي و، یو ریبار، یو سندر غاړی، یو پادري، او یوه ښځینه چوپړانسي وه، د هغوی غاښونه اوس هم دلینن ګراد په موزیم کې ایښي دي.

## منار او اوبه !!

د ترکیې د یوه جومات په منار کې یوه چینه ده، چې څلورویشت ساعته ترې اوبه را ځاځي، د اوبو دغه څڅوب او تویېدا له ۵۰۰ کالو راسې جریان لري.

## وزه چې کبان خوري!

په استراليا کې يو ډول وزې اوسي، چې خوراك يې کبان دي او کولای شي چې دونو په ښاخونو کې وګرځي او له پانو يې استفاده وکړي، دغه وزې ډېرې شوخې دي او کله کله پرسړي هم بريد کوي.

## لرغوني ورځپانه!

د نړۍ لرغونې ورځپانه د چين "پيکنګ ګزت" ده چې له ۱۰۰۰ کالو راهيسې په پرله پسې ډول چاپيږي، د ورځپانې له پيله تر اوسه پورې ۵۰۰ مديران اعدام شوي خو يوه ورځ هم نه ده له چاپه پاتې شوې.

## د ويني رواج!

په مراکش کې يوه قبيله عجيب رواج لري، دوی دواده پر مهال د زوم ستونی په چاړه غوڅوي او کله يې چې ستونی ورويني کړی بيا يې له ناوې سره نکاح تړي.

## ورکوټی انسان:

"فيزی کوشين" په ۱۸۵۰ کال کې خلکو ته د يوی ننداري په ترڅ کې را ښکاره شو چې قد يې يو فټ څلور انچه او د پښو اوږدوالی يې دوه انچه و، دا پخپل نوعيت کې يو ريکارډ و.



## د سرو زرو څنځیر!

د انګلستان دیوی ملکې په کالیزه کې یوه زرګر دسرو زرو یو ښکلی او نازك څنځیر ملکې ته ډالۍ په ډول راوړ، دا څنځیر چې کړه یې در لودله تر دې بریده نری اوسپك و، چې کله ملکې په مچ پورې وتړلو مچ بې کړاوه یووړ او فضا ته وخوت.

## واده او نیشه:

د اندونیزیا په قبایلوکې یو عجیب دود دی، کله چې څوك واده وکړي تر ۳ ورځو نشي کولای بهر راووځي او یا پر ځمکه ګام کښیږدي، پلار او مور هغه ته نیشه ورکوي او ۳ ورځې یې په اوږو ګرځوي کله یې چې ټاکلی وخت پوره شي بیا یې نکاح تړي.

## د مرغانو عاشقي!!

په لاتینه امریکا او ځینو افریقایي هیوادو کې یو ډول مرغان اوسي چې "لك لګو" نومیږي، دا مرغان پخپلو مینځو کې عشق کوي، واده کوي او د واده پر وخت سندرې بولي او نڅا کوي، څیړونکو ویلي چې کله نوموړي مرغان پخپل عشق کې ماته وخوري دځان وژنې اقدام هم کوي.

## د رندو او کنو پوځ !!

د مصر پخواني پادشاه "محمد علي" د خپلې پادشاهۍ په لړ کې يو ستر پوځ جوړ کړی و، جالبه داچې دلښکر ټول سپاهيان يې ړانده او کاڼه و.

## نيم متر هګۍ!

له يوې برتانيوي ښځې سره داسې هګۍ ده چې نيم متر اوږده ده ،ويل کيږي دا هګۍ د "هيوکل" الوتونکي.له نسله پاتې شوې چې اوس يې نسل.له منځه تللی دی، دا هګۍ.له نوروعا دي هګيو څخه ۱۸۰ ځله غټه ده وايې ددې هګۍ اچوونکې مرغه ۳ متره و. دا هګۍ په ۱۹۹۴کال د اپريل په ۸مه نيټه د لندن د ښار په نندارتون کې ننداريې ته ايښودل شوې وه.

## څوکۍ که پاڼې !!

په افريقا کې يو ډول ونې پيدا کيږي چې پاڼې يې ډيرې غښتلې او کلکې دي، نوموړې پاڼې نيم متر اوږدوالی لري او يو پنځوس کلن سړی کولای شي په اسانۍ پرې باندې کښينې او د چوکۍ په توګه يې وکاروي.

## چينجي او خواږه!!

د فرانسې زياتره اوسيدونکي په پسرلنيو مياشتو کې چنجی خوري، چنجي د فرانسويانو مهم او په زړه

پوړۍ خواړه دي. د يوې اندازې له مخې فرانسويان هر کال ۲۵۰۰۰۰۰۰ چنجيان خوري.

## د خاورو ژوی!

کچوا يو داسې ژوی دی چې په خاوره ژوند کوي د نومونړي نسل يو کچوا په يو ايکړ ځمکه کې تقريبا ۱۰ زره ټنه خاوره خاوري.

## د مرغانو ژړ!!

د سريلانکا په ځينو غرنيو سيمو کې يو ډول مرغان اوسي چې دغم پروخت ژاړي او دغم سندرې وايي. دا مرغان چې "سونسکی" نوميږي د ژړا پر مهال اوښکی هم بهوي.

## سپينه غوا توري شودې!!

د امريکا په متحده ايالاتو کې له يوه سړي سره سپينه ميښه ده چې توري شودې کوي، د ميښې څښتن وايي چې د شودو رنګ قير ته ورته دی او کله چې پنير ترې جوړوي د ګريسو بڼه غوره کوي. خو د خوند له مخې د نورو په پرتله خوږې دي.

## عجيبه وني!!

په برتانيا کې يو ډول ونې پيدا کيږي چې دپاڼو رنګ او څرنګوالی يې د وخت سره سم بدليږي. ددې



ونو پاڼې سهار سپيني، ماسپښين سرې، مازيګر زيړې او ماسخوتن بيا تورې وي.

## سرپاس مرغه!!

د بلوچستان په غرنيو سيمو کې يو ډول مرغان اوسي چې د سرپاس په نوم يادېږي، نوموړي مرغان له مښو کې سره ۱۲ سوري لري، کله چې سا وکاږي.له سوريو څخه يې هوا په داسې بڼه ننوزي چې يو ډول زړه راښکونکې موسيقي مېنځته راوړي، زياتره مرغان د "سرپاس" پر شاوخوا راټولېږي خو عجيبه لا داده چې دی يې له ښکاره ډډه کوي.

## چيچونکې بوټي!!

په امريکا او فرانسه کې يو ډول هيښوونکي او عجيب بوټي راشنه کيږي چې کوم ځاروی يا الوتونکی ورسره ولګيږي د لرم غوندې ټک ورکوي او چيچي يې.

## جالبه منظره!

په کوريا کې د تيرو يوه څوکه ده چې هر کال يوه جالبه منظره منځ ته راوړي، ددې څوکې پرسينه ۷۲ ډوله ګلان راغوړيږي او د پسرلي تر راتګ دوه ورځې د مخه مړاوي کيږي او لاندې بهيدونکي سيند ته لويږي.

## هیښنده چینه!

د فرانسې په يوه غرنۍ سیمه کې ه اوبو يوه چینه ده، چې اوبه يې د ۳۶ دقیقو او ۲۴ ثانیو لپاره بهیر لري او بیا ۳۰ دقیقې او ۴۰ ثانیې دا بهیر تم شي، کلونه کلونه کېږي چې دا چینه د خپل وخت په پابندۍ د خلکو د هیښتیا وړ گرځېدلې ده.

## غوږونه که قابونه!!

"ولهم روبډر" هغه ۱۲ کلن ماشوم دی، چې غوږونه يې قابونو ته ورته دي. د نوموړي غوږونه ۱۱ انچه اوږده دي او تر ډېره لرې اوازونه اوري. "ولهم" له خپلو غوږونو څخه د چتریو په بڼه هم کار اخستلی شي، چې له گرمي نه ځان پرې وژغوري، ډاکتران وايي دی کولای شي ۱۰ فټه لرې شمع د خپلو غوږونو په باد مړه کړي. د "ولهم" د اورېدا څواك له عادي انسانانو ۲۵ ځله زيات گټل شوی دی، نوموړی دسویډن په يوه ښوونځي کې تر زده کړې لاندې دی.

# خواره واره معلومات

- د الکترون تر ټولو وړه ذره "جی تی تامسن" وموندله.
- دواورې (کرنګ) په کلکېدو کې د امونیاګاز کارول کیږي.
- د اکسیجن نوم "مارك انطوني" ایښی دی.
- په نړۍ کې د سپیو تر ټولو ستر قبرستان په "پاریس" کې دی.
- د مرهم پټۍ طریقه لومړی" ابن ذکریارازی" دودکړه.
- د زیږیدو پر مهال د ماشوم سترګې نیلي رنګې وي.
- نایتروجن اکسایډیا "لافنګ ګاز" په خندوونکې ګاز مشهور دی
- د اوبو کیمیاوي نوم "هایدرو مونو" دی
- او بتل (اب دوز) د لومړي ځل لپاره "مشنل" جوړ کړ.
- د امریکا کلیفورنیا ښار ته د هګیو ښار وایي.
- د اسلامي نړۍ لومړنی جغرافیه لیکوال "یعقوبي" دی.

- اډیسن په خپل ژوند کښې ۱۳۰۰ اختراعګانې وکړې.
- د نړۍ تر ټولو کوچنی هېواد "مناکو" دی.
- یوه میل لمبې لپاره لس ملیونه وولټه ته اړتیا ده.
- که د انټرکټیکا د خنګل سطحه اوبه شي د سمندرو سطحه به ۳۰ فټه لوړه شي.
- د تجربوي ساینس بنسټګر د انګلستان "راجر بینکن" دی.
- د ځمکې عمر له دیرشو څخه تر څلویښتو ملیونو کلونو اټکل شوی.
- په ۱۴۵۲ هسپانوي کرستف کولمب د امریکا لویه وچه وموندله.
- په ۱۹۲۳ ز کال په نیویارک کې د نړۍ لومړنی غږ لرونکی فلم وښودل شو.
- اوسنی ایران د اریانا (افغانستان) یوه برخه ده.

# ایا پوهیږئ

- د ختیځ لمر " د شیخ ابراهیم سعد مصري ستاینوم و ، چې د تجوید د مشهور کتاب " ساطبیه" لیکوال دی.
- بروسلي په ۱۹۳۸ز کال د چین په هانګ کانګ کې وزیږید اوتر ټولو مشهور فلم یې " شامارغی" نومیږي.
- د انګلستان یوې ملکې " ویکتوریا " ۶۴ کاله پاچهایي وکړله.
- د بني عبدمناف په قبیله کې پنځه کسه و چې له حضرت محمد (ص) سره یې ورته والی درلود:

۱. ابو سفیان ابن الحارث دمحمد (ص) رضاعی ورور او د تره زوی.

۲. قثم بن العباس بن عبدالمطلب

۳. سایب بن عبیدیزید بن هاشم چې دامام شافعی (رح) نیکه و.

۴. د محمد (ص) لمسی حسن ابن علی.

۵. جعفر ابن ابی طالب، چې د حضرت رسول اکرم (ص) د تره زوی کېده.

- حکیم ابن حزام په کعبه شریفه کې دننه پیدا شوی.
- جعفر ابن ابي طالب ته د غریبانو پلار هم وایي.
- عباد ابن بسر د قران کریم د ملګري په نوم مشهور دی.
- د نړۍ تر ټولو ستر ګل " ملیشا " دی.
- د ګلابو عطر ملکې نور جهان جوړ کړی دی.

ښیښه له میلاد څخه ۱۳۰۰ کاله وړاندې جوړه شوې.




- په ترکیه کې یو ډول ونې دي چې نارنکس نومیږي کله چې ددې ونو پاڼې وچې شي ځلیږي او بلیږي.
- په استرالیا کې یو ډول مرغان اوسي چې له وزرونو پرته الوزي.
- په عراق کې د لرغونو اثارو له مطالعې څخه څرګنده شوې چې د "ګلدانې" اوسېدونکو ۲۷۰۰ کاله وړاندې د "فتبال" لوبه کوله.
- د ۱۹۹۲ز کال د مارچ د میاشتې په شپږمه نېټه د استرالیا په "کوینز لینډ" کې داسې باران وشو چې هر څاڅکی یې پنځه پنځه انچه اوږدو.
- هیلی په پر لپسی ډول ۲۰ ساعته وزرونه خوځولی شي.
- وایې د نیل سمندر په هغه برخه کې چې ددوو ځروبیو په مینځ کې پرته ده . تر اوسه هېڅ باران نه دی شوی.
- د افریقا د تیګازا په ښار کې ټولې ودانۍ له مالګو څخه جوړې شوې دي.
- په نړۍ کې تر ټولو ډېرې ورځپاڼې په روسیه کې چاپیږي.
- د نړۍ لومړنۍ ښځینه رنځپوهه "ډاکتره" رفیعده نومېده.

## يادونه:

ددې کتاب منځپانګه ټوله په ساينسي،طبي، ټولنيزو ،تاريخي ،ديني اوډول ډول معلوماتواو عجايبومشتمله ده،چې تېرڅوه کاله په پرله پسې ډول د"سهار"ورځپاڼې دبوډۍ ټال ترسرليک لاندې ځانګړې پاڼه کې برخه برخه چاپ شوي دي.
دموادوپه راغونډولوکې له سلګونوبهرنيو اوداخلي سرچينواوخبري رسنيوڅخه ګټه اخستل شوې ده چې دلته يې نوم راوړل ناشوني دي،خودومره يادونه بايدوکړم چې د"بوډۍ ټال،له پاڼوڅخه په څېنوکتابونواومجلوکې پرته له سرچينې يادولو ګټه اخستل شوې ده چې دغه چاردمطبوعاتوله تګلارې اوژورنالستيکي اصولوڅخه څرګند سر-غړاوی او يوه مطبوعاتي ګناه ده ،همدې ټکي ته دلوستوالو پام رااړوم که دلوستوپروخت له داسې څېزونو سره مخ شوئ ،چې تردې پخواموهم په کوم بل اثرکې ليدلي و موږ به بخښئ.

درنښت

ليکوال اوراغونډوونکی

# دانش خپرندويي ټولنې خپاره کړي:

تاریخ احمد شاهی
افغانستان در قرن بیستم
تاج التواریخ - پښتو
د افغانستان سقوط
سقوط افغانستان
در افغانستان چه میگذشت؟
افغانستان ستیج بازی بزرگ
د افغانستان لنډ تاریخ
تاریخ مختصر افغانستان
خسارات وارده به فرهنگ..
شبخون افغان
در زوایای تاریخ معاصر...
رجال و رویداد های...
بازی بزرگ
افغانستان سرزمین اریا
افغانستان د تاریخ په رڼا کې
جریانات تاریخی افغانستان
نقد بر جلد دوم مسیر تاریخ
خاطرات حکیم طبیبی
اسناد و نامه های تاریخی
سرې لښکرې په افغانستان
افغانستان څنګه تباه شو؟
د مرګ پر وزرو
سوځېدلی جنت
احمد شاه بابا دیوان
احمد شاه بابا افغان
د الفت شعري کلیات
د الفت نثري کلیات
غرغښت یا ګرشاسپ

تاریخ خط و نوشته های...
روسې پراختیا غوښته او...
سیمای سینمای افغانی
میتودهای کلینکی طبی
ګلزار لطایف
رازی را که نمیخواستم...
د پښتو ادبیاتو تاریخ
یاداشتهای من
مدعا و مثل در شعر بیدل
داود خان د کې جي بي په ...
فن زناشوی
د ښاپېرۍ ورغوی
له نرګسه تر نرګسه
خوږې خبرې
پلوشې، ژورلیدونه
افغانستان از جنګ ګرم تا...
ضرب الامثال و کنایات
یکدسته ګل
ستوري د ادب په اسمان کې
افکار جاوید
اهنګهای احمد ظاهر
اهنګهای ساربان
اهنګهای ناشناس
د خزان طلايي پلونه
سپوږمۍ په ځنګل زار کې
ولسي سندرې
محمد نور ولسي شاعر
پاتې شه باران دی

شین ټاغی
ګټیالی
ګلستان سندره
د غزني شابهار او بودايي هنر
شریك بالاپوش
کوچیانۍ پانګه
منشور کره کتنه
جراحي عمومي
از ابتدایه تا پوهنتون ګرامر E
له ښوونځي تر پوهنتونه ګرامر E
غوره نثرونه
ادبي بحثونه
لوړ خيالونه ژور فکرونه
کمر درد
مرض قند
متون نظم غنایی
زندګانی ناصر خسرو
د سمڅې یاران
د عبدالحنان دیوان
منتخب شعرونه
دیوان حافظ
د سرو زرو صندوق (۱-۲)
بودا په افغانستان کې...
هفتاد و سه ملت
څپو کې انځورونه
لنډې کیسې به څنګه لیکو؟
د فکر ټالونه
نومښودنه
اعمال قرانی
واژه نامه کمپیوتر

